# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

(ځانګړې ګڼه)

در پیم کال پنځمه ګڼه
پرله پسې شلمه ګڼه
لیندۍ ـ مرغومی
(قوس،جدي)

[۱۳۸۴]



اروابناد پوهاند علامه عبدالشکور رشاد بابا
په هند کې د هغه هیواد د ولسمشر فقید فخرالدین علي احمد سره د روغبړ پر مهال
(د سلواغې پنځمه ۱۳۵۴ل)

# قرآني مرغلري

بسم الله الرحمن الرحيم

إِنَّمَا يَأْمُرُكُمْ بِالسُّوْءِ وَالْفَحْشَآءِ

وَاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللهِ مَالَا تَعْلَمُوْنَ ۝

(البقره ۱۶۹آیة)

**ژباړه**:- ببشکه همدا خبره ده چې حکم کوي شیطان تاسي ته په بد کار او قبیح کار سره (چې عقلاً او نقلاً منفور دی) او چې و وایاست تاسي په الله باندي هغه خبري چې تاسي پرې نه پوهېږئ!.

**تفسیر**:- یعني مسئلې او شرعیه احکام له خپل لوري جوړوئ! لکه چې په ډېرو ځایو کي لیده کېږي ، چې پر ته له جزئیه وٙامورو ، تر اعتقاد یه وٙامورو پوري هم له شرعي نصوصو ځني ستر گي پټوئ! او له خپلي گیډي ځني نوي حکمونه راباسئ! او د قطعیه وٙ نصوصو او د سلفو په اقوالو کښي تحریفونه- تغلیطونه-اړول-رااړول کوئ!.




# کندهار

علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

د امتياز څښتن: د اطلاعات او کلتور رياست

دريمه دوره

دريم کال پنځمه گڼه ـ پرله پسې شلمه گڼه

لیندۍ ـ مرغومی (قوس، جدي)

مؤسس: محمد ولي خلمی
سرپرست چلونکی: عبدالمجيد بابی

**کتنپلاوی**

داکتر عبدالرازق پالوال، حيات الله رفيقي، عبدالکريم طالب رحيمي، فضل محمد پنهان، عبدالمجيد بابی

**کمپيوټر چاري**

مطيع الله روهيال

**بيه**

هيواد ۲۰ ـ افغانۍ
پاکستان ۳۵ ـ کلداري
نور د باندنې هيوادونه ۱۰ امريکايي دالره

**کلنۍ گډون**

هيواد ۱۲۰ ـ افغانۍ
پاکستان ۲۰۰ ـ کلداري
نور د باندنې هيوادونه ۸۰ ـ امريکايي دالره

**پته**

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست
علامه حبيبي وات
د کندهار مجلې دفتر
تليفون ۳۰۰۱۳۲۰
گرځنده ۰۷۰۳۰۰۰۲۴

## په دې گڼه کښې

بسم الله الرحمن الرحيم




# د هيواد د فرهنګ له هسکه د وروستيو رڼو او ځلاندو ستورو پنځم ستوری هم راپرېووت

ارواښاد **پوهاند علامه رشاد بابا** هغه ستره فرهنګي څېره ده چې د ډېر لوړ او د هر اړخيزه سرېتوب په ځل کښې يې د هيواد سيمې، تول خټيځ او د نړۍ په ګوټ ګوټ کښې د فرهنګي سرېو او کرېو ککرۍ نيغي او فرهنګي ارواوې يې په وجود کښې هست وې، او د دې هستۍ څخه او د دې هستۍ د رڼا څخه برخمن به د علمي او فرهنګي خلا سره تر ډېره هست او هسک وي

د بده مرغه زموږ د فرهنګ له سپېره ولي د رڼه او لاجوردي هسکه د دې هسک د لمر ارواښاد لوی استاد پوهاند علامه عبدالحي حبيبي د راپرېوتو وروسته يو په بل پسې د وروستيو ځلاندو ستورو څخه دغه پنځم ستوری. دا د فرهنګي شملورو سرغنه او دا د علم، پوهې او تقوا سرچينه، دا د فرهنګي هيلو او اميدونو رڼښته ډيوه او د حميده اخلاقو، نېږ سلوک او هسکي ګذارې او پوهنيزو ورتيوو ښېګڼه. قيمتي خزانه او د فرهنګي مقتديو د اوس مهال پېژندل سوی امام، رښتيني پېشوا او د فرهنګي يون په افق کښې تر هر چا لاس بری سره هم راڅخه ليرې او هم راڅخه په ډوبېدو سو

چې د جسمي بېلتون له امله يې هغه کړکېښ چې دوی ورباندي د دې هيواد د لرغوني هويت د لا څرګندتيا ګلونه ښندل. هغه څېرنه چې دوی د څېړني په سپېڅلو لاسونو پر ککرۍ ورته بګړۍ اېښودلې. هغه پښتو ادب او د پښتو ژبې هغه بېلابېل اړخونه چې دوی يې بډايي ژېرمي له هستيو ورته بيا هستي ډالۍ کولې د اوس له پاره د شيمو غونډې بې پلاره او د ښوزلۍ په وران چاپېريال کښې بې کوره او بې اوره سوه

دا ارواښاد **علامه رشاد بابا** و چې د اوو لسيزو په موده يې د خدای ورکړي لوړ نبوغ په بېساري ذهني پراختيا، غښتلي حافظې، لوړ همت، علمي صلاحيت، فکري او ذهني پياوړتيا د پوهي سره په مينه، د ولس او هيواد سره په ليوالتيا، د زده کړې د بهير او د زده کړيالو د روزنې او پالنې د پاکو ولولو د غښتلتيا، لوړ زغم او نورو ګڼ شمېر ښېګنو په برکت د دې هيواد د کړکېښ د ځلېدو، د پښتو ادب د بډای کېدو، د څېړنو د بشپړېدو او د شعر او شاعرۍ په موېو د ټولني د مسېدو او زغېدو له پاره زيار وګاله. هڅې يې وکړې او په دې لاره کښې يې هغه ډول ستړېدو نه اوږه ورکړه چې د حق ادا ينه به يې تر ډېرو د ډېرو د توانه وتلې چاره وي

هغوی که د غښتلي فرهګي حيثيت څخه برخمنه څېره وه د مېنې، خواخوږۍ او انسان پالني تر څنګ يې د همت او زړه ورتيا بېلګي هم لږ موندلای سو د هغوی مينه د هغوی د سپېڅلي زړه زېږنده وه. دا سپېڅلی زړه او د

دې سپېڅلي زړه سپېڅلی حريم د هر چا کور و په دې کور کښې يې پالنه او قدرونه کېده او ورته په ورين تندي ښه راغلاست ويل کېده. دا زړه د مظلوم سره ژړېدی، د حق په لاره کښې د حق او عدالت پلي کېدو له پاره ټپېدی، خو د ظالمانو، جبارانو او فرعونانو په وړاندې سپر کېدی، او د کرکي په توګه به ورته ښنمېدی.

دا **علامه رشاد بابا** و چې د هيڅ جابر او منفور واکمن او يا واکمنو د سياسي موخو د رنګ او خوند له پاره وسيله ونه ګرځېده. چانه يې سر ټيټ نه کړ او نه دوی ځيله پوهه د لړزېدونکو سياستونو د پېوړتيا له پاره وکاروله او نه د ځانګړو محدودو موخو د مختنه وړونکو او کاغذي مخکښانو او جعلي سالارانو او واکدارانو د لاس آله وګرځېده.

هغوی ښه، ښه او بد يې بد ګڼل، د ټولو بدو په وړاندې په لوړ همت ودرېد، او د مرګ تر پولي همداسي وپاتېد او وپالېد، لارويان او زده کړيان يې د سپېڅلي وجود په نورانيت باندې په طوافونو ماړه نه سوه او بې لارو له دې امله چې د دوی ژوند د غښتلي ليکنې، تېز فکر او ځيرکو سترګو څخه په بهره کښې وه پر مړينه يې هم دا جرئت نه درلود چې د تابوت په لور يې سترګي هم راښکاره کړي همدا لامل و چې هغوی ورک او دوی د ولس او ورسره د ګڼ شمېر فرهنګيانو، فرهنګپالو، ليکوالانو، ددوی د مينه والو، دوستانو او علاقمندانو د ځپو پر اوږو د ابدي کور تر بريده ورسېدل

هيله دد د دې لويي فرهنګي زيرمي او پر انسان، خپلواکۍ او هيواد د ميني ځېرې همدا لويه تشه د دوی د لارويانو په غښتلو قدمونو، او د دوی غوندې په ځانګړې مينه او بشپړه زغم سره څه نا څه د هېرېدو او نه کتو څخه وژغورل سي

څښتن دې دې لويې تشې ته د فرهنګيانو دا تش کاته او د **علامه رشاد بابا** پر پلوتو د پلونو اېښوده په دې تږدې و کښې د هغې د ډکېدو لامل وګرځوي

چې انشاء الله د دې مېړنی خاوري باتور او مېړنی ولس د کړکېښېزه بهيره څخه هم څرګنديږي چې هغوی به وخت پر وخت د **علامه رشاد بابا** غوندې د وتلو او منلو ککريو څخه نه بې برخي کيږي

دا چې د فرهنګي يون دا مېړنی سروال، دا د فرهنګ لوی غاوړ، دا د انسان او د حق او عدالت دوست، دا د خپلواکۍ او خپلواکو مين، دا د همت، پت، زړه ورتيا، وتلې ښېګڼه او دا د مېلمه پالنې او ښتيا ويني اتل د الهي غوښتني پر ښنسټ جسماً زموږ څخه بېل سوی خو فرهنګي زېرمي او د حق چيغه، د خپلواکۍ ولولې او د دوی د نورو ښېګڼو سپېڅلي سيوري راسره مل او زموږ تر څنګ دي موږ به د دوی د ښېګڼو او فرهنګي تلپاته سيوري تر وزرونو لاندې لا تر ډېره د فرهنګي ژوندی برخمن واوسو، او د **پوهاند علامه رشاد بابا** نوم به راته ژوندی او ياد به يې تلپاته وي

**اروا يې ښاده جنتونه يې په نصيب**

**آمين**

**اداره**

# اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد

ډاکټر طارق رشاد

**اکاډیمسین پوهاند رشاد** د ۱۹۲۱ م کال د نومبر پر ۱۴مه (د ۱۳۰۰ لمریز کال د لړم د میاشتې پر درویشتمه نېټه) چې د لويي برتانيي ښخه زموږ د ګران هیواد افغانستان د سیاسي خپلواکۍ دوه کاله تېر سوي وو د کندهار د ښار د بابړو د کوخې په يوې مخورې او درنې کورنۍ کې سترګې پر نړۍ ته پرانیستې.

دې کورنۍ د سوداګرۍ تر څنګ د علم او پوهې سره ښه مینه لرله او پلار یې ارواښاد عبدالغفور خان د مروجو علومو د مطالعې خاوند او غیر له خپلې مورنۍ ژبې په پارسي، عربي، اردو او انګریزي پوهېده او نیکه یې حاجي محمد ایاز خان د خپل وخت مشهور سوداګر او ورنیکه (غور نیکه) یې محمد جان خان، تر نیکه یې نېک محمد خان او سر نیکه یې لکي ساپ خان چې د یو لک سیکو خاوند او د معاصر افغانستان د بنسټ ایښودونکي ستر احمدشاه بابا (۱۷۴۷ ـ ۱۷۷۳ م) د وخت



اکاډمیسین پوهاند علامه رشاد (۱۹۵۰م)

د مشهورو خلکو څخه و. دا کورنۍ پخوا د پاچا جوړونکو (King Maker) کورنیو څخه بلل کېده، لکه نورمحمد خان بابړ چې د مستوفي الممالک او ګل محمد خان بابړ د امین الممالک دنده سر ته رسوله او د افغانستان ټولي اقتصادي او د پلان چاري ور د غاړه وې. دلوی احمدشاه بابا سره يې کورنۍ دوستي هم درلوده او د هغه د لمسي شهزاده زمان چې وروسته له خپل پلار تېمورشاه څخه پر تخت کښېناست او د شاه زمان په نوم يې شهرت تر لاسه کړ خسر هم و.

د **استاد رشاد** په روزنه او پالنه کې په لومړي ګام کې د هغه فاضل پلار مهمه ونډه درلوده، لکه چې دی خپله د ګوربت مجلې سره په مرکه کې وايي "زما لومړی استاد زما پلار دی. پر هغه دې خدای ورحمیري زه يې روزلی یم. خو متاسفانه چې د هغه سیوری په ۱۳ کلنۍ زما له سر څخه لیري سوا و ما د ده له ټول فضیلت څخه استفاده

ونه سوای کړای. ولی تقریبا ۶۹ (اوس ۷۴) کاله وړاندې ما انګریزي الفبا له پلاره زده کړې او عربي کتابونه مې هم تر مختصر پوري له پلاره ویلي دي. فارسي کتابونه مې. لکه: ګلستان. بوستان. حافظ او نور ټول له پلاره زده کړي. البته نور استادان مې هم لرل. خو لومړی استاد مې پلار دی. همدارنګه د "افغانستان" په نوم کوم اخبار چې په لاهور کې خپرېده او پښتو برخه یې درلوده زما پلار ته راتې چې ما هم مطالعه کاوه".

**پوهاند رشاد** د خپلې خیر کتیا له امله د بر ژر په ۱۹۳۳ م کال په لومړي درجه له ښوونځي څخه فارغ او په ۱۹۳۴ م یې په دیارلس کلنی د ښوونکي په توګه رسمي ماموریت پیل کړ چې د پوهې او د سن د لږوالي له امله یې په کوچني ښوونکي شهرت پیدا کړ چې حتی د بر شاګردان به تر ده مشران هم وو.

په ۱۹۴۶ م کال د کندهار د ښار د انتخابي ټولني رئیس او ۱۹۴۷ م کال د کندهار د ښاروال مرستیال سو او له ۱۹۵۸ م کال وروسته هندوستان ته ولاړ. هلته یې خپلو ځانګړو زده کړو او هم هلته یې د ښتنو او پښتو په اړه ژورو څېړنو ته دوام ورکړ چې د "لودي پښتانه" کتاب یې چې ۴۲۰ مخونه لري او "سوري پښتانه" یې بېلګې دي. د دې تر څنګ یې هندي ژبې او دیوانګري لیکدود هم زده کړ او څه سانسکریت او انګرېزي ژبې یې هم ولوستې. په ۱۹۵۲ م کال کې د ویښو ځلمیانو چې د افغانستان لومړی ملي او دیموکرات ګوند و د استازي په توګه د کندهار د ښاریانو له خوا پارلمان ته انتخاب سو. خو د کندهار د والي عبدالغني خان (قلعه بیګي) او د چارواکو د مخالفت له وجې چې د ویښو ځلمیانو او **استاد رشاد** سره یې درلود د دوی د رایو صندوق د پولیسو له خوا ضبط او د ښاروالۍ له تالار او انتخابي حوزې څخه راوایستل سو.

په ۱۹۵۸ م کال د پښتو ټولني د مسلکي غړي او د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي د استاد په توګه وپېژندل سو چې وروسته بیا د پښتو ټولني د ریاست مسلکي مرستیال وټاکل سو. سره له دې چې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي استاد هم و.

په ۱۹۶۱ م کال د پخواني شوروي اتحاد د سنت پترزبورګ د ښار د ختیځ پېژندني د انستیتوت د پښتو ژبې استاد په توګه د دوه نیم کالو له پاره ولېږل سو چې وروسته افغانستان ته راستون او د کابل پوهنتون د ژبو ادبیاتو او ښري علومو د پوهنځي په پښتو څانګه کې استاد او بیا د دغه د پیاړ ټمنټ (څانګې) شف (مشر) سو او د وخت لوړه علمي رتبه پوهاندي یې تر لاسه کړه. څو ۱۹۷۸ م تر پیښې وروسته لزوماً تقاعد ته سوق سو خو د رژیم د مخالفت سره سره یې خپلې علمي او فرهنګي اړیکې د علومو اکاډمۍ، علمي ټولنو او کړیو سره وساتلې.

**استاد رشاد** لومړی شعر په ۱۹۳۴ م کال په دیارلس کلنی ویلی خو د هغه لومړی شعر په ۱۹۳۸ م کال او لومړنی څېړنیزه لیکنه په ۱۹۴۱ م کال د افغانستان په مطبوعاتو (طلوع افغان) کې خپاره سوي دي. د ده په وینا له ۲۶ کلنی څخه د ویښو ځلمیانو د نهضت غړی و. د جهاد او مقاومت پر مهال په کابل کې اوسېده خو مضامین او شعرونه به یې په مستعارو نومونو چې په هیواد کې خطر ورته پېښ نه کړي د کلفورنیا په Freedom. د ناروې په مجاهد ولس، جرمني، اتریش، هند، د پېښور په قلم، کراچي او نورو ځایونو کې خپرېده او چې د بر به تر څه نه وو او په سمبولیک ډوله به د وخت رژیم غندل سوی او ملي مقاومت او ازادي ستایل سوې وه په کابل کې هم خپرېده او له ۱۹۹۲ م کال وروسته د تنظیمونو تر منځ د واک د ساتلو او یا تر لاسه کولو جګړه پیل او اتنیکي اختلافاتو ته لمن ووهل سوه. د هغه د غندني په خاطر یې هم شعرونه او لیکني د هیواد څخه دباندې خپرې کړې او د طالبانو په وخت کې یې په یوه غونډه کې چې د ۱۹۷۹ م کال د روسانو د تېري د غندني په اړه نیول سوې وه **استاد رشاد** د سر په بیه د طالبانو سیاست د روښنفکرانو او دموکراسي په اړه وغانده او دا یې په ډاګه وویل چې: "**زه ویښ ځلمی وم، یم او اوسم به، او دا ګوند هغه ګوند دی چې په افغانستان کې یې د لومړي ځل له پاره د دیموکراسي رغ پورته کړ**".

د ۱۹۷۸ م کال تر پیښې وروسته بیا تر ۱۹۹۲ م کال پوري د دوی د سیاستونو د غندني په اړه یوه شعري ټولګه د "ملحد شاهي" په نوم لیکلې او له ۱۹۹۲ څخه بیا تر ۱۹۹۶ م کال پوري یې یوه شعري ټولګه د "تنظیم شاهي" یا ملا شاهي په نوم لیکلې او وروسته یې د طالبانو تر سقوط پوري د "طالب شاهي" په نوم یوه شعري ټولګه لیکلې ده. هم یې د "زورواکي" او "بل واکي" پر ضد شعرونه لیکلي خو په څرګند ډول ویلای سو چې ژوند یې تل د چارواکو سره په مخالفت (اپوزیشن) کې تېر سوی چې نه یې ظالم واکمنان منلي او نه یې پردي واکمني. د دموکرات او متعادل سیاست خوښوونکي ریفورمست په توګه یې په یو څه آزاد چاپېریال کې مخالفت څرګند او د اختناق په

شرایطو کې یې په ټېه او سمبولونو مخالفت کاوه . له دې ټولو ستونزو سره سره چې په وارو وارو تعقیب سوی او تهدید سوی او دا امکان یې هم تر لاسه کړی چې څو ځله په شخصي ډول جاپان، هندوستان، پاکستان، یمن، امریکا، سعودي عربستان او نورو هیوادونو ته سفرونه وکړي. خو خپل هیواد یې خوشې نه کړ او بیرته خپل هیواد ته ستون سوی دی . د ده وینا ده

"**هیواد هر چانه گران دي او له هغه سره مینه لري، خو ما ایمان پر راوړی، که مرم هم دلته به یم او که ژوندی یم همدلته به یم**".

**اکاډیمسین پوهاند رشاد** په پارسي، عربي، اردو، هندي، روسي او انگریزي ژبو پوهېده او پر خپلې مورنۍ ژبې پښتو برسېره یې په پارسي او اردو ژبو کې هم سه خوره عروضي شاعري کړې ده . خو دوی خپل ټول ژوند د پښتو ادب د پرمختګ او ودې په لاره کې تېر کړی. علمي، ادبي او تاریخي آثار یې لیکلي، د نړیوالو ادبیاتو ژباړې یې کړي او زیات شعرونه یې زموږ شعري نړۍ ته ډالۍ کړي دي. د دوی ۳۶ آثار له سلګونو مقالو سره چاپ سوي چې په لاندې ډول دي



علامه رشد بابا په هندوستان کې د هغه هیواد د ولسمشر فخرالدین علي احمد سره د روغبړ پر مهال . د سلواغې ۵ ـ ۱۳۵۴ ل

۱ . لودي پښتانه په ۴۲۵ مخونو کې د ۱۹۵۸ م کال چاپ .
۲ . ډیلي د پښتنو په وخت کې سر یزه. ۱۹۶۰ م کال چاپ .
۳ . د لیوتول ستوی درې نکلونه (ژباړه) ۱۹۶۹ م کال چاپ .
۴ . د یوولسم ټولګی پښتو قرائت د ۱۹۶۱ م کال چاپ .
۵ . د دوولسم ټولګی پښتو قرائت د ۱۹۶۱ م کال چاپ .
۶ . د امیر خسرو دهلوي هندي شاعري د ۱۹۷۴ م کال چاپ .
۷ . د خیر البیان لغتونه په ۱۲۲ مخونو کې د ۱۹۷۴ م کال چاپ .
۸ . د خیر البیان په سریزه کې درې مقالې د ۱۹۷۴ م کال چاپ .
۹ . د دولت لواڼي د دېوان سریزه د ۱۹۷۴ کال چاپ .
۱۰ . د واصل روښاني د څو شعرونو سریزه او سمونه د ۱۹۷۴ م کال چاپ .

۱۱ . پاني ، نې انبت ادهيايي او په هغه کې پښتو کلمې د ۱۹۷۵ م کال چاپ .
۱۲ . گيتانجلي د رابندرناټ ټاگور اثر د پښتو ژباړې سريزه په ۱۰۴ مخونو کې ۱۹۷۵ .
۱۳ . تاج د رابندرناټ ټاگور اثر د پښتو ژباړې سريزه د ۱۹۷۵ م کال چاپ .
۱۴ . د گولډن شيټ د فرهنگ سريزه د ۱۹۷۷ م کال چاپ .
۱۵ . د گلشن روه سريزه په ۱۹۲ مخونو کې د ۱۹۷۷ م کال چاپ .
۱۶ . د احمدشاه بابا خو اشعار . د پښتو شرحي سريزه د ۱۹۷۷ م کال چاپ .
۱۷ . د احمدشاه بابا د ديوان غورچاڼ. د ۱۹۷۸ م کال چاپ .
۱۸ . بديع . درسي کتاب د دارالمعلمين له خوا په ۱۹۸۰ م کال کې چاپ سو .
۱۹ . د ابن سينا مخارج الحروف پښتو ژباړه .
۲۰ . د پښتو تجويدونو تاريخچه په ۷۴ مخونو کې د ۱۹۸۰ م کال چاپ .
۲۱ . د اسماء الحسنى سريزه د ۱۹۸۰ م کال چاپ .
۲۲ . د ځمکنيو ميا عمر د ۱۹۸۱ م کال چاپ .
۲۳ . د حاجي جمعه بارکزي د ديوان سريزه او لغت نامه د ۱۹۸۲ م کال چاپ .
۲۴ . پر (افغانستان و هند بريتانوی) باندي څو خبري د ۱۹۸۲ م کال چاپ .
۲۵ . د پټې خزانې فرهنگ د ۱۹۸۳ م کال چاپ .
۲۶ . درباره ظفرنامه اکبری و ناظم آن د ۱۹۸۶ م کال چاپ .
۲۷ . د قصه خواني خونړۍ پېښه د ۱۹۸۸ م کال چاپ .
۲۸ . لس مقالې
۲۹ . سوبهاش چندربوس (ژباړه)
۳۰ . د زړه ويني (شعري ټولگه) د ۱۹۹۱ م کال چاپ .
۳۱ . د افغانستان بدي ورځي (شعري ټولگه) د ۱۹۹۴ م کال چاپ .
۳۲ . لوليه پېغله (شعري ټولگه) د ۱۹۹۵ م کال چاپ .
۳۳ . کوروش څون اشام (نظم) د ۲۰۰۰ م کال چاپ .

**ناچاپ آثار يې**

۱ . پښتانه شعراء په اردو کې په دغه اثر کې هغه پښتانه معرفي سوي دي چي په اردو ژبه يې شعرونه ويلي دي. په دغه اثر کې ۳۸۳ تنه شاعران راغلي دي .
۲ . پښتانه شعراء په پارسي ژبه کې په دغه اثر کې هغه پښتانه چي په پارسي ژبه يې شاعري کړې. په دغه اثر کې ۲۰۰ تنه شاعران معرفي سوي دي .
۳ . آيا؟ په دغه اثر کې هغه تېروتني او تېرايستني په گوته سوي چي په پښتو او پارسي ادبياتو او تاريخ کي د پاملرني وړ دي .
۴ . غالب جنگ نواب محمد خان بنگښ او د هغه کورنۍ .
۵ . د پښتني قوم او قبيلو په باب يادداشتونه په ۲۰۰ مخونو کې .
۶ . مستشرقين په دغه اثر کې ۲۰۰ تنه ختيځ پوهان چي د افغانستان. پښتو او پارسي ژبو په باب يې څېړني کړي معرفي سوي دي .
۷ . امين الملک گل محمد خان غوریاخېل بابړ او د هغه کورنۍ. چي د استاد له نيکونو څخه دی .
۸ . ملي قهرمان غازي محمد اکبر خان .
۹ . سوري پښتانه .
۱۰ . د کندهار د مدرسو تدريسي نصاب .
۱۱ . حضرت ابوبکر صديق په پښتو ژبه په ۱۴۰ مخونو کې .
۱۲ . په زړه پارسي او اويستا کې پښتو کلمې (د ماسټري دوري ليکل سوی اثر او د پوهنتون د ماسټرۍ په نصاب کې شامل اثر)
۱۳ . د کندهار زيارتونه .
۱۴ . ادبي قاموس : دغه اثر شپږ ټوکه دی. لومړی ټوک (۱۰۰۰) مخونه. دوهم ټوک (۵۰۰) مخونه. دريم ټوک (۱۰۰۰)مخونه. څلورم ټوک (۴۷۰) مخونه. پنځم ټوک (۴۸۰) مخونه. شپږم ټوک (۱۶۰) مخونه .
۱۵ . پښتانه مصنفين : دغه اثر دري ټوکه دی. لومړی ټوک (۳۵۰)مخونه. دوهم ټوک (۹۰) مخونه دريم ټوک (۷۰)مخونه .
۱۶ . جغرافيايي يادداښتونه. دغه اثر دوه ټوکه دی. لومړی (۳۵۰) مخونه. دوهم (۳۰۰) مخونه .

۱۷ . د کندهار تاریخي یاداښتونه. دغه اثر په دوو ټوکونو کي دی. لومړی ټوک (د مغلو دمخه د کندهار په باب). دوهم ټوک (تر مغلو وروسته د کندهار په باب).

۱۸ . د احمدشاهي عصر نومیالي په دوو ټوکونو کي: لومړی ټوک هغه برخه چي د احمدشاهي شاهنامې تعلیقاتو په نامه راغلې ده. دوهم ټوک له احمدشاهي شاهنامې پرته نور نومیالي دي .

۱۹ . پښتانه مشاهیر دا اثر درې ټوکه دي .

۲۰ . د طریقت شجرې هغه تصوفي طریقې چي په افغانستان او پښتنو کي مشهوري دي .

۲۱ . نسبي شجرې دغه شجرې څلور ټوکه دي لومړی ټوک په هندوستان کي د پښتنو نوابي او مشهوري کورنۍ. دوهم ټوک د سدوزو پاچهان، شهزاده گان او سرداران. دریم ټوک: د محمدزو پاچهان. شهزاده گان او سرداران. څلورم ټوک: د پښتو قومونو په باب عمومي شجرې .

۲۲ . سل متله په اوو ژبو: دغه اثر په څلورو ټوکونو کي تر اوسه لیکل سوی دی. او دغه متلونه په پښتو. پارسي، عربي، انگرېزي، روسي، اردو او ترکي ژبو باندي لیکل سوي دي .

۲۳ . (۲۰۰۰) روسي متله په پښتو ژبه .

۲۴ . د خوشال فرهنگ: دغه اثر اووه ټوکه دی . (۱) طب نامه. (۲) بازنامه. (۳) رباعیات او قطعات. (۴) دستارنامه. (۵) غزلیات او قصاید. (۶) غزلیات او قصاید. (۷) غزلیات او قصاید .

۲۵ . د پټي خزانې فرهنگ دوهمه برخه .

۲۶ . د گلشن روه لغتنامه .

۲۷ . د خیرالبیان لغتنامه .

۲۸ . د فرهنگونو په باب په دغه اثر کي هغه ټول فرهنگونه چي په ختیځ کي لیکل سوي معرفي سوي دي. لکه: پښتو فرهنگونه (د الفباء په ترتیب)، پارسي فرهنگونه (د الفباء په ترتیب)، عربي فرهنگونه (د الفباء په ترتیب)، ترکي فرهنگونه (د الفباء په ترتیب)، هندي فرهنگونه (د الفباء په ترتیب) .



اروانباد استاد بېنوا، لوی استاد علامه حبیبي او فاضل استاد علامه رشاد ۱۳۵۸ ل پښتو ټولنه ـ کابل

۲۹ . بدیع : په ۳۷۱ مخونو کي .
۳۰ . بیان : په ۳۷۰ مخونو کي .
۳۱ . قافیه : په ۳۰۰ مخونو کي .
۳۲ . عروض : په دوو ټوکونو کي، لومړی ۷۶۷ مخونه، دوهم ۳۵۰ مخونو کي .
۳۳ . معاني : په ۳۸۳ مخونو کي .
۳۴ . نقد : د پښتو، پارسي او عربي ادبیاتو تاریخي او علمي برخو کي (۲۲۳) مخونه .
۳۵ . مکتبي قاموس، په دغه اثر کي د ښوونځیو د کتابونو (۶۰۰۰) لغتونه تشریح سوي دي .
۳۶ . په گلشن روه کي د بابوجان منتخبات نثر نه دي (اثر) .
۳۷ . لاله : (د شعرونو ټولگه) .
۳۸ . روڼي اوښکي : (د شعرونو ټولگه) .
۳۹ . لوی احمدشاه بابا د خلکو له نظره .
۴۰ . چاپ سوي خلوبښت خدیثه .

که د دوی ناچاپ آثار د ټوکونو په ډول وشمېرو چي ماته څرگند دي (۶۹) ټوکه ناچاپ آثار د کتابونو په ډول او په سلگونو ناچاپه مقالي او نور آثار یې سته چي ډېري څېړني ته اړتیا لري. او هغه چي موږ ته څرگند دي په ټولیز ډول د **استاد** ۳۶ آثار او په سلهاوو مقالي او شعرونه چاپ او (۶۹) آثار او په لسگونو مقالي او شعرونه یې ناچاپ پاته دي . **اکاډېمسین پوهاند رشاد** د خپل استعداد، علاقې، پرله پسې زیار او مطالعې په نتیجه کي عالم، عامل او معلم پېژندل سوی او د پښتو ادبیاتو د تاریخ د معاصرې دورې لیکوال او استاد کاندید اکاډېمسین سرمحقق محمدصدیق روهي د **استاد** په اړه لیکي :

"**پوهاند رشاد** په تاریخ، ادبپوهنه او لغت پوهنه کي د تجربې درلودلو له امله د روښانفکرانو له خوا ( **فاضل استاد** ) لقب گټلی دی، د ده د معلوماتو پراختیا او قوی حافظه او رپېدونکي په حیرت کي اچوي . **فاضل استاد** په اوسني وخت کي د پښتو او پارسي ادبیاتو د کلاسیک متونو د مشکلاتو د حل کولو له پاره یو مهم مرجع گڼل کیږي . **استاد رشاد** نه



د اکاډمسین پوهاند علامه رشاد بابا وروستی دیدن
د لیندۍ د میاشتي ۱۱ مه ۱۳۸۳ ل

یوازي د خپل علمي تجربې له کبله بلکي د تقوا او د نفس د مناعت په درلودلو سره پوهانو او روښانفکره قشر په منځ کي خاص محبوبیت لري" .

زموږ ښه لیکوال معصوم هوتک د استاد په اړه لیکي :

"**پوهاند رشاد صاحب** زموږ د زماني له هغو وتلو پوهانو څخه دی چي د پوهي او فضیلت ازانگه یې د سیمي تر هیوادونو رسېدلې، په هندوستان، پاکستان، پخواني شوروي اتحاد او د سیمي نورو هیوادو فرهنگي حلقې د **استاد** له نامه سره پوره اشنا دي . دا ځکه چي د **استاد** عالمانه څېړنو او د هیواد په لوړ روزنیز مرکز کابل پوهنتون کي شل کلني

پاته په (۹۴) مخ کي

# تیروتني



داکټر عبدالرازق پالوال

د کندهار مجلې چلوونکو د یوء نېک کار تکل کړئ دی. دوی د ښاد روان **علامه عبدالشکور رشاد** په یاد او ویاړ و دوی ته ځانګړې سوې کندهار مجله راباسي. نو له لیکوالانو او شاعرانو څخه ئې د پېرزوینې ونډه غوښتې ده.

د **پوهاند رشاد** تخلص یو اسم بامسمی و. دی هم دغسې رسېدلئ او باثباته ټینګ انسان و. زموږ په زمین و زمان کښې دغسې سړي په ټولنیزو او حکومتي چارو کښې پر مخ تللای نه سي. په دې ټولنه کښې به سړي مناسبات پالي، د یوء او بل دوور به ور ټکوي، په ستاینو سره به یې باټوي. او د هغه د هر راز ویناو تائید به کوي داسې چې ستاسو محترم په خوله کښې خبره ده. په ګل دې بدله وي. تاسې خورا ښه وفرمایل. او زه ئې په تائید سره وایم: دا چې تاسې د غونډې پر سر باندې نهالان ایښې دي. او هر کله چې تر ثمره پورې ورسېږي. نوم تې باید بربنړ وي، ترڅو چې باغ ځني جوړېږي. د کلي نجوني او هلکان ئې باید ټاپي پر ټاپي او پر شاوخوا باندې ئې ارګوړي ووایي.



تیروتني

لومړی ټوک

پوهاند عبدالشکور رشاد

۱۳۸۲

څوک به ښایې اعتراض وکي چې نو ولې دي الصلاتونه یاد کړي نه دي. دا ځکه چې په الصلاتونو کښې د اوبو غوښتنه سوې نه ده، خو په ارګوړو کښې د دغې اړتیا یادونه سوې ده. او دغه یادونه د پاکو، معصومو مؤمنانو له خوا څخه کیږي. که چا ارګوړي کړي نه وي، او نه پوهیږي چې دا بیا څه دي؟ نو زه به دغه هم در وړاندې کم چې داسې دي:

ارګوړي بر ګوړي<br>
خدای دې یو زوی در کي چې<br>
پر غولي در ته ښوري<br>
لو لاړ نګه څه غواړي؟<br>
یوه کاسه اوړه غواړي<br>
په مالګه ئې تروء غواړي<br>
د آسمان خړي اوبه غواړي<br>
آمین (د کسر کورء س)

**پوهاند رشاد** نه د امراؤ یو راز ستاینې کولې او نه هم بل راز. ولي خپل مخالفت ئې د دوی له پالیسیو سره تل برملا کړئ و. نو ځکه هم دی پر خپل ځای باندې ولاړ پاته و:

لکه ونه مستقیم پر خپل مقام یم
که خزان راباندي راسي که بهار
رحمان

**پوهاند رشاد** په خورا دقیق تحقیق سره ډېر کتابونه کښلي دي . خو له دغو څخه به دوه یا درې د دې په ژوندانه کښي چاپ سوي وي نور ټول ئې ناچاپه پاته دي .

څه ۴۵ پنځه څلوېښت کاله تر مخه په ادبیاتو پوهنځي کابل پوهنتون کښي استاد رشاد زموږ د ادبي فنونو د مضمون استاد و . دې په دوسیه کښي یو لوی بنډل اړونده نوټونه لرل . ما یوه ورځ ورته وویل چي استاده، تاسي ولي دغه نوټونه د یوې کتاب په شکل سره نه چاپوئ؟ دوی ومسل، ویل ئې : ښه دئ، داسي به وسي .

نو کله؟ څه څلوېښت کاله وروسته ما بیا پوښتنه څني وکړه چي استاده، تاسي هغه د ادبي فنون په اړوند ټول کړي نوټونه د کتاب په توګه چاپ کړای سول؟

دوی په ورین تندي سره راته وویل چي : چا و چا غوښتنه راڅخه وکړه چي دغه کتاب و دوی ته ورکم څو چاپ کړي ئې وي . ما هم کتاب ورو سپارئ . بیا وروسته ونغوږېدم چي دغه کتاب تر اروپا پوري تللئ و، او بیا آن تر کاناډا پوري لاړ رسېدلئ و . خو اوس حال نه په لرم چي چیري او څنګه به وي؟

څه دوه کاله وروسته مي بیا پوښتنه څني وکړه چي استاده هغه د ادبي فنونو کتاب چاپ سو، که لا چاپ سوئ نه دی؟

دوی راته وویل : تر کومه ځایه پوري چي زه معلومات لرم، لا چاپ سوئ نه دئ .

دا خو ئې داسي او داسي ایسي لکه موصوفو کسانو چي ئې د چاپ له پاره پیسي نه لرلې، او کتاب ئې هم بېرته ورو لای نه سوای .

اوس به راسم و یوې بلې پېښي ته چي د دغي مخنیوی خود هرومرونی دئ . دغه د **شادروان پوهاند صاحب** په لیکلو لیکنو کښي د نورو د غلطیو مخنیوی دئ . نمونه ئې د دوی هغه چاپ سوې لیکنه ده چي تېروتني نومیري . دغه رساله په منځني قطع چاپ سوې ده، او ۶۶ مخونه لري . خپرونکي ئې ''د ختیځي سیمي آزادو ژورنالستانو او لیکوالو اتحادیه'' ده . چاپ ځای ئې دانش کتاب پلوریځ، پېښور، او کال ئې ۱۳۸۲ دئ .

په دغي کوچینۍ رسالې کښي دوه رازه ورانی سته . یو راز سهوي یا تېروتني دي، او بل راز ئې لاسي اړوءني یا لاس وهني دي . زه به ئې لومړی تېروتني او بیا لاس وهني درکم . دغه کار ځکه کوم چي یو خو د **شادروان پوهاند صاحب** له نورو آثارو سره داسي کړه ـ وړه سوي نه وي، او بل د دې له پاره څو بلکله، په نژدې یا لیري زمانه کښي، چا په دغو ورانیو سره استناد کړئ نه وي چي **پوهاند صاحب** دغسي کښلي دي . نو ځکه ئې اوس دوی هم داسي کاږي یا لا هم داسي وایي . ورانی داسي دي :

په جلالآباد کي د **پوهاند استاد رشاد** علمي سیمینار په ویاړ .

سم ئې : په جلالآباد کښي د **پوهاند استاد رشاد** په ویاړ د علمي سیمینار له خوا .

د متن ورانئ :

"څو دي لاس رسیږي هومره څني تښته دنیا توره مرهټي ده ادم خوار ادبي ستوري ۲۵۹/۱" . . . .

تر دغي کرښي دمخه کرښه داسي پیغام لري :

"د مرهټه یادونه د پښتو ژبې نازک خیاله شاعر قلندر داسي کړې ده : "دا خو مانا تر مخني کرښه بیت دی، نه کومه نثري جمله، نو ځکه باید داسي کښله سوې وای :

څو دي لاس رسیږي هومره څني تښته
دنیا توره مرهټي ده آدم خواره

د لوی احمدشاه بابا غازي [illegible] ۱۱۶۰ ـ ۱۱۸۶ هـ ق د پاني پت مشهوري سوبې حضرت امان مرهټي په سادنامه کښي ۱۱۷۴ هـ ق داسي یادي کړي دي :

"احمدشاه بابا په کابل ناست و په غرور اودلیان ورته ولاړ وو، هر طرف یو سړی ورلره راغی د رامپور ودې کومه عرض ای شاه شرف مظالم د مرهټي راباندي کیږي . . . .

فتحي وکړه هندوستان کي په هر لور په څنګلونو . پر میرو یې څغلوله ټول اولس او کلاګاني . کلي کور څیني پاته خپل ځانونه یې ژغورله : (۱۱ مخ)

وړاندنۍ کرښي بیا هم بیتونه دي، خو د منثورو جملو غوندي کښل سوي دي . سم ځبر ئې داسي دئ :

احمدشاه په کابل ناست و په غرور
اودلیان ورته ولاړ وو هر طرف
یو سړی ورلره راغی د رامپور
وېل کومه عرض ای شاه شرف
مظالم د مرهټه راباندي کیږي
مرهټان لکه ګدړ ورته تر هیري
فتحي وکړه هندستان کښي پر هر لور
ټول اولس او کلاګاني، کلئ کور

په خـنگلونو، په میرو ئې خغلوله
ځنې پاته خپل ځانونه ئې ژغورله

وړاندنی مخمس دئ او خود په وزم سره وایه کېدئ .

دریېم بند ئې پر ۱۲ مخ باندي سم ټایپ کړې سوئ دئ . (۴۱ مخ)

د شمس الدین کاکړ په پسي بیت کښي "پر" هېر کړې سوئ دئ .

لکه لعل په ایرو کښي وي بې قدره
هسي پروت دئ شمس الدین { پر } کلچابات

الف لومړنی جوپه وړانئ :

نوري لغوي وړانئ له متنه څخه کښلي لاندي یکړي وړاندي کیږي . دغه جوپه وړانئ سهوي دي، نه لاس وهني .

| اصلي سم | ناسم | مخ |
|---|---|---|
| له پاره | له پره | ۱۲ |
| کودی (نسبي) | کوری | ۱۲ |
| نهه نیمي میاشتي | نه نیمي | ۱۷ |
| محزون | محزن | ۲۰ |
| این خون | این خود | ۲۰ |
| استاد کامل | استاکامل | ۲۳ |
| شبخونی | شنجونی | ۲۴ |
| یغنوبي ژبه | نعنیوبي ژبه | ۲۶ |
| ـ ؟ | د تر درجه لري | ۳۹ |
| ۱۱۰۰ | ۱۰۰ | ۲۳ |
| پیرزئ | پیزری | ۴۴ |
| دربار ته | دربار تر | ۴۴ |
| تاریخي کلي | تاریخي کالي | ۴۵ |
| زمینداور | زمیندار | ۴۵ |
| ریینداور | زیندار | ۴۵ |
| مازندران | مازندان | ۴۴ |
| په جنوبي هندوستان کي | په جنوب هندوتسان کي | ۵۰ |
| "ذو" | "زر" | ۵۱ |
| له راتگ څخه تېه وکړله | له . . . لټه وکړله | ۴۴ |
| ضحاک | ضماک | ۵۲ |
| ویهند | دیهند، دیهند | ۵۵ |
| ۶۲۳ق م | ۶۲۳م | ۵۶ |
| سري لنکا | سریلینکا | ۵۷ |
| زوکړي | زړکړې | ۵۷ |
| ۳۰۴ق م | ۳۰۴ق | ۵۷ |
| موریا | موزیا | ۵۸ |
| چندرگیت | چندرگیت | ۵۸ |
| نرواڼا | نرواڼ | ۵۸ |
| شلمه | شمله | ۶۴ |
| ۱۷۷۲ | ۱۱۷۲ | ۶۴ |
| د ترکانو | ترکانو | ۶۵ |
| زخمي | زځمي | ۶۶ |

ب : دوهمه جوپه وړانئ : اوس به هغه جوپه وړانئ درکم چي په لاسي توگه سره اړولي سوي دي :

| اصلي سم | اړولئ | مخ |
|---|---|---|
| زموږ | زمونږ | ۸ |
| وتښتېدئ[1] | وتښتېده[2] | ۱۲ |
| د صفري پر | د صفري په | ۱۲ |
| پر سیمو باندي | په سیمو باندي | ۱۲ |
| د محرمي پر پنځلسمه | د محرمي په پنځلسمه | ۱۳ |
| پر شپږویشتمه | په شپږویشتمه | ۱۴ |
| لیري | لري | ۲۱ |
| پرله پسې | پله پسې | ۲۱ |
| الحاکم | الهاکم | ۲۱ |
| د محرمي پر پنځمه | د محرمي په پنځمه | ۲۱ |
| صحیح | سهي | ۵۱.۴۶.۲۸.۲۲.۹.۸.۴ |
| دواړي کلمې | دواړه کلمې | ۲۲ |
| ولیکئ | ولیکه | ۲۲ |
| نخښه | نښه | ۲۸ |
| بحر | بهر | ۹ |
| پر مالونو | په مالونو | ۳۰ |
| ځني تښته | خیني تښته | ۱۲.۱۱ |
| د څلرمي خور پر شلمه | د څلرمي خور په شلمه | ۳۱ |
| اخستل کېدئ[3] | اخستل کېده[4] | ۳۰ |
| یوه لغتنامه | یو لغتنامه | ۳۳ |
| ښخ | خښ | ۳۳ |
| پر لور | په لور | ۳۴ |
| ږغ | غږ | ۳۶ |
| په ریگ کي | په شگو کي | ۳۶ |

[1] مذکر
[2] مونث
[3] مذکر
[4] مونث

| یوه بهانده چینه | یو بهانده چینه | ۳۷ |
| --- | --- | --- |
| پر حوض باندې | په حوض باندې | ۳۸ |
| خاه دئ | خاه ده | ۳۸ |
| موضح القرآن | موضوع القرآن | ۳۹.۳۸ |
| لوېدیځ | لوېدیز | ۴۱ |
| فهم | پام | ۴۲ |
| ورتلئ | ورته | ۴۳ |
| د څلرمي خور پر نولسمه | د څلرمي خور په نولسمه | ۴۴ |
| حیران | هریان | ۴۶ |
| پایخوړ | پیسوړ | ۴۹ |
| ورسېدئ[5] | ورسیده[6] | ۵۵ |
| یوه میاشت | یو میاشت | ۵۵ |
| شل آسه | شل اسه | ۵۵ |
| واوسېدئ[7] | واوسېده[8] | ۵۶.۵۵ |
| د دسمبر پر ۲۵ | د دسمبر په ۲۵ | ۵۵ |
| د مارچ پر ۱۵ مه | د مارچ په ۱۵ مه | ۵۵ |
| وغږوله | وغځوله | ۵۶ |
| یعني | یاني | ۵۹ |
| نژدې | نردې | ۶۰ |
| مده | موده | ۶۱ |
| پکښې | پکې | ۶۴ |
| دوهم _ دوهمه | دویم، دویمه | ۶۵ |
| اینه | ائینه | ۶۶ |
| ساه وي | ساوي | ۶۶ |

ټولي سهوې : ۳۲ د سهوو سلنه : ۳۹.۵٪
ټولي لاس وهنې : ۴۹ د لاس وهنو سلنه ۶۰.۵٪

د ۱۱ سم مخ تېروتنې او لاس وهنې چې تر جدولونو دمخه درکړل سوي دي، په هېره سره شمېرلي سوي نه دي .

**پایلامه**

د لوی عالم **پوهاند صاحب رشاد** رساله چې په منځنی قطع ۶۶ مخونه ده په دغه وړاندې درکړي ګڼ شمېر سره غلطۍ او لاس وهنې پکښې سوي دي، نو د یوء بل لړ پېژندلي لیکوال دي خدای وزله وکي . د هغه په لیکنه کښې به لا څه پېښیږي؟ آیا په دغسي ګڼ شمېر وراتیو سره د **پوهاند صاحب** رساله مسخ کړه سوې ده که نه؟ که دغه مسخ کېدل نه وي، نو به مسخ کېدل و څه ته ویل کیږي؟ یوه ټولنه او یو ناشر چې د یوء ستر پوهاند په وړوکې رساله کښې داسي ګڼ شمېر وراني ولري، بل به څوک زړه ورته ښه کي . آیا دغسي کړنه د دوی د اعتبار ته صدمه نه رسوي؟ آیا په یوه کوچینی رساله کښې د غلطیو دغسي ډېر ښت زموږ پر نارسایی، بې پروایی او بې مسئولیتی باندي دلالت کوي که نه؟

په نوره نړۍ کښې پنځه سوه (۵۰۰) مخیز کتاب چاپ کړه سي، یوه ورانی نه لري . زموږ د نشر یاتو دغه حال دئ . نه مو افراد د مسئولیت فهم او احساس لري، او نه موهم مؤسسات . دا ځکه چې موږ د لیکوالانو حقوق ساتني په اړوند یوه دغسي مطبوعاتي لایحه، اصولنامه یا قانون نه لرو، که به ئې لرو، نو نه تطبیق کیږي .

په لوېدیځي نړۍ کښې چې قانون، قضاء او حکمیت سته، ناشر ئې له مسئولیته څخه په ډېر هنر سره ځان ژغورلئ دئ . ناشر چې کتاب په لومړنی پلاله چاپ څخه وباسي، هغه و ناشر ته وراستوي څو د لومړنی جولې غلطی ئې نیولي وي . دوهمه پلا ئې بیا ور استوي، در ېیمه پلا بیا، او تر هغو پوري څو یوه غلطي هم پاته سوې نه وي . هر کله چې کتاب و دغه شان بشپړ تابه ته ورسېدئ بیا نو ناشر امضاء ځني اخلي . وروسته که غلطئ پکښې پیدا سوې، مسئول به ئې پخپله لیکوال وي، نه ناشر . نو دعوه هم په کولای نه سي .

عموماً دغه پروفونه (Proofs) د دوو کسانو له خوا څخه سره تطبیق کیږي چې یو ئې چاپي جوله لولي، او بل ئې و اصل ته ګوري . په اوس کښې به د کتاب کمپیوټر کړې جوله دغسي کتله کیږي . کله چې څوک مسئولیت ولري . غلطي هرو مرو اصلاح کوي .

له نېکه مرغه **ښادروان پوهاند رشاد** تر ښا تکړه روزلي لوېي او زامن پرې ایښي دي . زما هیله له دوی څخه دا ده چې د پوهاند صاحب آثار به و هر چاته د چاپ له پاره نه وروسپاري . که به څه هم دغه کار دوی پخپله هم کوي، خو ما دغه یادوءنه د خپلې اندېښنې د رفع کولو او ټینګار له پاره وکړه دوی ئې باید و اعتمادي کسانو ته په مسئولیت سره وروسپاري څو چا بې پروایي او بې احتیاطي ورسره کړې نه وي .

[5] مذکر
[6] مونث
[7] مذکر
[8] مونث

سرڅېړونکي ژلمی هیوادمل

# اروابناد

# پوهاند رشاد

## پښتو ادب ښه وځلاوه

په افغانستان کې د ادب پوهنې په بېلابېلو ساحو کې معاصر تحقیق له (۱۳۱۱ هش) کال نه را پد ېخوا یوې نوي مرحلې ته داخل سوی. دا ځکه چې په (۱۳۱۱ هـ ش) کال په کندهار کې پښتو ادبي انجمن جوړ سو او تر دې انجمن دمخه په کابل کې هم ادبي انجمن جوړ سوی و.

په (۱۳۱۰ هـ ش) کال طلوع افغان گرد په پښتو سو چې دغو نهادونو ټولو د پښتو څېړنو په پرمختیایي سیر کې برخه درلوده. خو کله چې د کابل د ادبي انجمن او د کندهار د پښتو انجمن له یو ځای کېدو څخه پښتو ټولنه جوړه سوه (۱۳۱۶ هـ ش) نو پښتو څېړني د ژبې او ادب په نهایت کې د فرهنگ په بېلابیلو ساحو کې یوې بلې پرمختللي مرحلې ته داخل سوې.

د پښتو ادبي څېړني په دغو مرحلو کې د دغو لاندنیو مشرانو او استادانو د کار اوزیار مرهوني دي، لکه:

مرحوم امین الله زمریالی، مرحوم محمد گل نوري، مرحوم استاد عبدالحی حبیبي، مرحوم عبدالغفور خروټی، مرحوم استاد بېنوا، مرحوم استاد خادم، مرحوم استاد الفت، استاد صدیق الله رښتین او **استاد رشاد**.

**استاد رشاد** له (۱۳۲۰ هـ ش) کال را په دېخوا پښتو څېړنو ته مخه کړېده. زما د معلوماتو له مخي د **استاد رشاد** لومړنی لیکنه چې د ادبي څېړني په ساحه کې شامليږي، په همدې (۱۳۲۰ هـ ش) کال د طلوع افغان په اخبار کې چاپ سوې ده. دا لیکنه د عبدالرسول ماشوري په باب ده. په لیکنه کې استاد د رحمن بابا د مکتب د فکر د پیرو، د شعر د دېوان ازادنامې او سفرنامې خاوند شاعر عبدالرسول احوال او اثار معرفي کړل، او د استاد د همدې لیکني له مخي د نوموړي شاعر احوالو او اثارو پښتو تذکرو ته لاره پیدا کړه او استاد رښتین د پښتانه شعرا په دوهم ټوک کې عبدالرسول **د رشاد صاحب** د لیکنو له مخي په موږ وپېژاند. په دې حساب نو د **استاد رشاد** د ادب پوهني د ساحې کارونه له (۱۳۲۰ هـ ش) کال نه را پیل کیږي او تر ننه پوري په ټوله دغي موده کې **استاد رشاد** په هیواد کې او که د هیواد دباندي د پښتو ادبي څېړنو په کارونو مصروف پاته سوی دی. کتابونه، رسالې، پر ادبي اثارو سریزي او په لسگونو مقالې یې لیکلي دي چې د **استاد** دغه گرد اثار د پښتو په معاصر تحقیق کې خپل ځای لري.

**استاد رشاد** د ادبي څېړني او یا د ادب پوهني بېلابېلو ساحو ته مربوط کارونه په دریو ژبو لکه پښتو، فارسي او اردو کې سر ته رسولي دي، چې د پښتو هغه یې پر نورو څو چنده ډېر دي. د کار د ساحې پر اساس د **استاد** څېړني کابو د ادب پوهني بېلابېلي ساحې چاپېروي تر کومه ځایه چې ما د **استاد** اثار کتلي دي **استاد رشاد** د ادب پوهني په بېلابېلو اساسي او فرعي څانگو کې څېړني کړي دي، چې زه به یې ځیني څېړني دلته یادي کړم:

**د ادب تاریخ**

که څه هم د **استاد رشاد** د پښتو ادبي تاریخ په نامه کوم مستقل اثر نه دی چاپ سوی خو د دوی ځیني چاپ سوي آثار د پښتو د ادبي تاریخ د دريو دورو په مطالعه او بشپړونه کي ارزښت لري. لکه

د خوشحال خان پېژندني په باب د استاد د درسي نوټونو. که هم د درسي مقاصدو پر بنا تهیه سوي دي مګر له

اخوند درویزه ننګرهاري ... ، د خوشال خان، رحمان بابا، میرزا بابوجان، اخوند قاسم، عبدالقادر خان، هجري، عبدالحمید مومند، احمدشاه بابا، کاظم خان شیدا او ځینو نورو د احوالو او اثارو په باب ځیني عمده او تازه ټکي د پښتو د ادبي تاریخ لیکوالو ته وړاندي کوي.

د پښتانه شعرا د دریم ټوک دوهم چاپ که موږ د **استاد رشاد** خپل مستقل اثر وبولو نو هیڅ خطا به مو نه وي



د ښي لوري څخه ... عبدالبري جهاني، اروانباد کاندید اکاډمیسن محمد ابراهیم عطايي، ... استاد حبیب الله رفیع، ... استاد محمد ابراهیم خواخوږی، ... اروانباد علامه رشاد بابا او سرخېړونکی زلمی هیوادمل. خنجان. ۱۳۵۵ ل کال

خېلو څانګړو تحقیقي ارزښتونو څخه برخوردار دي. د خوشال خان پېژندني په باب د استاد د مقالو مجموعه (لس مقالې) هم د هېرولو نه ده. دا مجموعه په څانګړي ډول د اطلاعاتو او کلتور وزارت له خوا چاپ سوې ده.

**د څمکنو میا عمر**

د **استاد رشاد** دغه اثر په دوولسمه هجري پېړۍ کي د پښتو د یوې فرهنګي کورنۍ په ادبي فرهنګي کارونو رڼا اچوي. د هانزي جارج راورټي د ګلشن روه سريزه، د

کړې. ځکه د دغه کتاب د لومړي چاپ لپاره استاد (۱۸) تنو شاعرانو د احوالو او اثارو د پېژندني تر څنګ د دوی د کلام نمونې هم وړاندي کړېدي. خو کله چي په (۱۳۴۲ هـ ش) کال کي دا کتاب دوهم ځل چاپېده، پر یادو سوو شاعرانو سربېره د نورو اتو تنو سوانح هم **استاد** بشپړي کړې. او د کتاب ګرد مطالب دوی تصحیح او تنقیح کړل. او ضمایم یې ورسره مله کړل دا به پر ځای او سمه خبره وي چي د پښتانه شعرا دریم ټوک د **استاد رشاد** تالیف وبولو

ځکه د دې لړۍ نورو مولفينو هم په نورو ټوکونو کې تر **استاد** زيات کارونه نه دي کړي. د پښتانه شعرا د دريم ټوک له مطالبو د پښتو د ادبي تاريخ د دوهمې دورې په کښلو کې زياته استفاده کېدای سي.

د دولت ديوان. د واصل د شعرونو، د احمدشاه بابا د اشعارو د پښتو شرح. د ميا فقيرالله جلال ابادي د اسماء الحسنی. فوائد فقيرالله. د ملا عبدالباقي تبيين الواجبات او د جمعه بارکزي د ديوان مقدمې د دغو خلکو د احوالو او اثارو په باب د ادبي تاريخ محققينو ته نوي مطالب وړاندي کولای سي.

په (۱۳۵۳ هـ ش) کال کي د بايزيد روښان د بين المللي سيمينار په مناسبت د استاد دري عمده مقالې:

"د خير البيان ليک دود. خير البيان نظم دی که نثر. د خير البيان مولف په کوم کال مړ دی؟".

داسي مقالې او ليکني دي چي د روښاني لارې د باني د احوالو او فرهنگي کارونو په باب ځيني عمده او اساسي مطالب موږ ته وړاندي کوي. پر دغو اثارو سربېره د **استاد رشاد** ځيني عمده مقالې لکه:

د شاهنامې ناظم او شاهنامه، په پښتو کي درې نيم سوه کاله پخوا عروضي شعرونه. د خواجه محمد بنگښ د ديوان او د هغه عروضي شاعري، د شرف عروض شاعري، د پښتو او عروضي سيستمونه، عبدالعلي اخوندزاده او د هغه عروضي شاعري، حاجي يارمحمد او نوري په لسگونو مقالې د ادبي مؤرخ لپاره د ډيرو باوري او عمده ماخذو ارزښت لري.

د گيتانجلي د دوهم چاپ او د تاج مقدمې او د مرحوم مير حيدر صاحبزاده په باب ليکنه د **استاد رشاد** داسي اثار دي چي د پښتو د ادبي تاريخ د معاصري دورې مؤرخ يې له ليدلو او مطالعې چاره نه لري.

ادبي تاريخ ته په مربوطو رسايلو، کتابونو او مقالو سربېره دوی د نقد په برخه کي هم ځيني کارونه کړيدي. د استاد د ادبي څېړنو په تيرو يادو سوو اثارو کي هم د نقد ريښې سته، ځکه د ماخذ د نقد تر څنگ استاد د ځينو اثارو په باب خپل مشخص نظريات او قضاوتونه هم څرگند کړي دي اما د ادبي څېړنو مربوطه د ده ځيني مشخص نقدونه هم ليدل سوي دي. دا ډول نقدونه له

**پنځم ستوری اروابناد فاضل استاد اکاډمسين علامه عبدالشکور رشاد**

متني کره کتنو سربېره نور نقدونه دي، لکه د پښتو عروضي نقد چې ورمه کې چاپ سوی دی. او یا هم د (۱۳۵۶ هـ ش) کال په زیري کې د استاد ځیني خپاره سوي نقدونه .

د ختیځ پوهانو د اثارو نقدونه، د دوی د دې ساحې ډېر عمده کارونه دي. دوی په دې باب خپل برداشتونه او یادښتونه په (۱۳۵۶ هـ ش) کال د پښتو چاپي اثارو په سیمینار کې وړاندي کړل. د متنونو د تصحیح او کره کتني په برخه کې **استاد رشاد** ځیني ارزښتمن او د فرهنګ په



د سې لوري څخه استاد فضل محمد پنهان، محمد داود خان، عبدالمجید بابی، عبدالمالک همت، علامه رشاد بابا، ډاکټر عبدالرازق پالوال، محمد صادق خان او مطیع الله روهیال . د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست ــ ۱۳۸۳ ل کال

ګټه کارونه سرته رسولي دي. چې موږ د متني کره کتني په برخه کې د دوی کارونه ښودلای سو .

په ګلشن روه کې د بابوجان منتخبات نثر نه دی . دا اثر د استاد د دې لړۍ د کارونو یو عمده اثر دی چې په (۱۳۵۳ هـ ش) کال کې یې د پوهاندۍ درجې ته د خپلې علمي ترفیع لپاره کښلی دی. استاد په دې کتاب کې د بابوجان هغه منتخبات چې په ګلشن روه کې د نثر په برخه کې راغلي دي نظم ثابت کړل . دا کتاب په پیل کې یوه

درنه علمي مقدمه هم لري، چې د پښتو د ادبي تاریخ په لیکلو کې نه سي هېرېدای .

د خوشال د چاپي اثارو نقد چې ځیني برخې یې په متفرق ډول چاپ سوي دي. او یوه عمده مقاله یې په (۱۳۵۹ هـ ش) کال په کابل مجله کې چاپ سوېده، د هجري د چاپ سوي دېوان نقد چې د هجري یاد په مجموعه کې چاپ سوی دی، د خواجه محمد بنګس د چاپي دېوان نقد چې په ورمه کې چاپ دی، د پروفیسر برنهارډ ډورن د پښتو منتخباتو نقد چې ځیني برخې یې په (۱۳۵۹ هـ ش) کال په کابل مجله کې چاپ سوي دي، د ډاکټر جان لیډن د پښتو کړي انجیل متني ګډوډي چې په کابل مجله کې چاپ سوي دي. په ګلشن روه کې د راغلو ځینو متونو نقد چې د ګلشن روه په مقدمه کې چاپ سوی دی، د متونو د تصحیح په خصوص کې د **استاد رشاد** غوره کار د احمد شاهي شاهنامې د متن تصحیح او چاپ ته برابرول دي .

دوی پر دې شاهنامه ډېر عمده تعلیقات او مقدمه هم کښلې ده . د واصل د شعرونو تصحیح د استاد د دې لړی بل کار دی. پر دې بر سېره استاد د اخوند درویزه ننگرهاري ـ د مخزن الاسلام ځینې عمده او مهم کارونه سرته رسولي دي . په دې سلسله کې د استاد تر ټولو مهم کار د پښتو تجویدونو د تاریخچې لیکل دي، چې په (۱۳۵۹ هـ ش) کال کې د ابن سینا د مخارج الحروف له پښتو ترجمې سره چاپ سوی دی .

د شرعه الاسلام پېژندنه، حسني پېژندنه او هم د زیور د پښتو ترجمو پېژندنه د استاد د دې لړی ځینې عمده مقالې دي . د ادب پوهنې په بېلابېلو څانگو کې د استاد رشاد د څېړنو د سوولو په لړی کې سړي ته د استاد ځینې نور کارونه هم مخې ته راځي چې په لیکنه کې بې له یاده چاره نه لرو .

په دا ډول کارونو کې استاد د نورو ژبو له ادبیاتو سره د پښتو ادبیاتو روابط زیاتره د ترجمو او متقابلو اغیزمنیو له مخې سره ټینگ سوي دي، په دې لړی کې **استاد** ډېر کارونه کړي، چې څو یې زه دلته یادوم :

۱ . په اردو ژبه کې د پیر محمد کاکړ د څو پښتو بیتونو ترجمه چې په (۱۳۵۳ هـ ش) کال په وږمه مجله کې چاپ سوېده .

۲ . په دکني ژبه د اخوند درویزه د پښتو شمایلنامې ترجمه، دا لیکنه په (۱۳۵۹ هـ ش) کال په زیري کې چاپ سوېده .

۳ . د ترکمني ژبې د شاعر محترم قلي او احمدشاه بابا روابط، دا مقاله په (۱۳۶۳ هـ ش) کال په مجله کې چاپ سوېده .

۴ . په پښتو کې د مولانا جلال الدین محمد بلخي ـ د مثنوي د حکایاتو دفترونو او بشپړ متن د پښتو د ترجمو په باب تحقیق، په دې تحقیق کې **استاد** په بخارا کې د اوسېدلي پښتانه شاعر محمد عبدالجبار بنگښ، مولوي احمد، عبدالاکبر خان اکبر، مولوي صالح محمد هوتک او گل پاچا الفت ترجمې سودلې دي .

د **استاد** دا مقالې په زیري او کابل مجله کې چاپ سوي دي . د ۱۳۵۶ ـ ۱۳۵۷ هـ ش .

په پښتو کې د ناصر خسرو بلخي د شعرونو او بیتونو د ترجمو سوول . دا مقاله هم په کابل مجله کې چاپ سوې ده .

ما په اجمالي ډول په ادبي څېړنو پوري مربوط د **استاد رشاد** ځینې کارونه یاد کړل. که چیري سړی په تفصیلي ډول د **استاد** ادبي څېړني وڅېړي، نو غټ کتاب پرې لیکل کیږي . د دې اجمالي بیان تر څنگ زه غواړم چې د استاد د ادبي څېړنو ځینې عمده خصوصیات وښیم :

**۱ . ابتکار**

د **استاد رشاد** کومې ادبي څېړني چې ما لیدلي دي، زیاتره ابتکاري ارزښتونه لري، استاد د پښتو څېړنو په ځینو داسې برخو کې قلم چلولی دی چې تر دوی دمخه د چا پام نه دی ور اوښتی، که د ځینو څېړنو په باب یې ځینې ابتدايي یادوني تر دوی دمخه چاپ سوي هم وي، وي به، که نه د دوی ټولې ادبي څېړني نوی والی لري .

**۲ . د ماخذونو نقد او ارزیابي**

**استاد** چې په خپلو څېړنو کې له کومو ماخذونو څخه استفاده کوي هغو ټولو ته د شک په سترگه گوري، د هر چا څخه په پټو سترگو نه مني او د خپلې وسیعې مطالعې په مرسته د کره او کوټه تر معلوملو وروسته له ماخذونو استفاده کوي .

۳ . د **استاد رشاد** د څېړنو یوه عمده ځانگړنه دا ده چې دوی د ادبي مسایلو سره سطحي برخورد نه کوي، بلکي مسایل او موضوعات په زیات غور علمي دقت او ژوروالي څېړي .

**استاد** نه یوازي زموږ د هیواد په سطحه بلکي د منطقې د هیوادونو په سطحه یو لوی محقق او دانشمند و چې ټولې علمي او ادبي څېړني یې زموږ د راتلونکو څېړنو لپاره مشالونه دي .

د هیواد ورځپاڼې څخه په مننه



### علم تجربه او ژور فکر

- رښتیا تر ټولو تیوریو او فلسفه بافیو ستره تجربه ده .
- هغه څېزند چې د علم څخه تر لاسه کیږي تر ټولو خوندور او سوچه دی .
- پوهېدل همېشه د زده کړې څخه دي .
- بشپړ جهل تر نیمگړي علم ښه دی، ځکه چې لږ معلومات ډاکټر سړی وژني خو چا چې طب نه وي لوستی د ډاکټری په چارو کې لاس نه وهي او چاته زیان هم نه رسیږي .

عبدالمجید بابی

# د جمال او کمال د سالار

# یون

د لوی ښستن د پېرزویني او زمورږ د سپېڅلو خلکو د ځانګړ تیا له مخي د پښتنو کړ کېښ تل په ویاړونو پسولل سوی او دا ویاړونه د کړ کیښ په اوږدو کښي د خدای ورکړو وړ تیاوو له مخي د منلو سړیو او کړیو د منلو هڅو، حماسو او ویاړلو کارنامو له بر کته رامنځته سوي دي چي د پایلو په رڼا کښي یې همهغه مکان او د همهغه مکان په چارچاپېره کښي میشتي پرګنې او اولسونه د تلپاته برم او لوړ نسان ښښتنان ګرځېدلي دي .



د جمال او کمال سالار او لیکوال

پښتانه همداسي وه او همداسي پاته سوي دي د پراخو ذهنیتونو ښښتنان، د پت او همت بېسارو ککریو د دې ټولني ویاړمن کړ کېښ په خپلو سپېڅلو څېرو سره لا ښکلی کړي دي او په ځوځوځله یې د یوې بشپړي او د پر مختګ او تمدن تر پوله پوري د رسېدونکي ټولني په ډول د نورو تر ځنګ ځان راڅرګند کړی دی . که څه هم په هر مهال کښي غلیم د دې اولس د پر مختګ په وړاندي سپر سویدي خو د دې اولس د مېړ نیو تدبیر او د تورو او لیکنې تېرو څوکو یې غاړي او ځګرونه څیرلي او په شرمو یې شرمولي دي .

که د سیاست ډګرونه دي که د لیکنې، پوهي او درایت غولي دي او یا د غزا او خپلواکی د لاسته راوړلو له پاره د ګولیو په باران د باروتو د لوګیو او تورو لوخړو په لړ یو پوښل سوي سیمي او ډاګونه دي او یا د استعدادونو په سیالي کښي د ککریو د ارزوني سنجشونه دي د دې ټولني یو دوه او یا ګوته په شمېر اتلان د نورو د لسګونو او سلګونو سره په یوه تول ختلي دي. د دغو اتلانو بېلګي زیاتي دي. دې ټولني ډېر داسي سړي او منلي څېرې زېږولي او په خپله سپېره ولي مېړ نی او باتوره غېږه کښي یې پاللي او روزلي دي چي د هر اړخیزه ذهني پراختیا څخه برخمن، تیا یې بېساري ده .

همدا ویاړلي ککری دي چي په خپله ذهني وړتیا سره یې هم ځان ځلولی او هم یې نورو ته د رڼه څراغ په ډول د

هغوی د تیارو گوټونو نه د ځلېدو له پاره شپې سبا کړي دي. او د زړه په وینو یې د لیکنې د تیرې څوکي خوځښتونه ژوندي ساتلي دي. د دغسي مېړنیانو او منلو اتلانو بېلگي د ژوندانه په هر اړخ کښې زښتې زیاتي دي. د هر یوه ځېړنه او پلټنه او د هغوی په اړه څرگندوني او لیکني د ډېرو کار او ډېر زیار غواړي.

## پیدایښت

لوی ښوواند **علامه رشاد بابا** لکه چې د خپلواکی سره یې توده مینه او لېوالتیا لرله او دا چې په خپل ټول ژوند کښې پر خپلواکی مین. خپلواکي یې خوښه او د خپلواکی د درنښت او پایښت له پاره یې د زړه ويني د خپل سپېڅلي لیکنې د خوځښت له پاره نذرانه کړي وي. لامل به یې څه



دلته یوازي د پوهي د ډگر پر لور مخه کوو. او په دې پراخ او ویړ ډگر کښې د وروستیو اتلانو د وروستي منلي اتل. د هیواد او چارچاپېره سیمي او ختیځ په هسک کښې د اوسمهال د وتلي او منلي یوه په څېړنه. کړ کښښ لیکنه، ادبپوهنه. تذکره لیکنه. ویی پوهنه. ژباړي او شعر و شاعري کسې د پیژندل سوي څېړې لوی ښوواند **پوهاند علامه رشاد بابا** پر لور ستر گي کږوو او ورته په درنښت سره د سرټیټېدو سره یو ځای. د هغه په اړه چې په دې وروستیو کښې د افغانستان د فرهنگي او علمي یون د ستر کاروان د سروالی له ټېکځای څخه بېل او په جسمي ډول یې د الهی خوسي پر بنسټ خپل ملگري. خپل زده کړیان. خپل لارویان. خپل دوستان او رادتمندان یوازي پر ښووول څه وړ غږو او د ږغېدو همدا ډېره وړه لړی به په لاندي ډول را پیل کړو.

و؟ زه چي سوچ کوم د خپلواکی د جگړې د غازي اتلانو د وینو نښي د دې مځکي او هسک په ځانگړې پاملرنه سره لاهمهغسي د دې هیواد په سپېرو او مېړنیو ډگرونو. غرو او رغونو کښې په ځلښت وي. د غازي پلرو او نیکه گانو پاکي ارواوي لا د دې هیواد د مېړني مېني دپاسه په گښت وي او د خپلواکی د لاسته راوړو څخه څو سوه گړي او که بشپړ غور وسي نو د ۱۷۵۰ گړیو په شاوخوا کښې به تېر سوي وه چي **علامه رشاد بابا** د ۱۳۰۰ لمریز کال د لمرم په میاشت کښې د همدې ډېرني کندهار چي د کړ کښښ په اوږدو کښې د سیاست، پوهي، فرهنگ او ټول ژغورني سروال پاته سوی د بابړو په کوڅه کښې د خپل پتمن پلار عبدالغفور خان په کور کښې وزېږېد.

یاد سوی عبدالغفور خان د خپل وخت د وتلو سوداگرو څخه و. چي پر سوداگری سربېره یې د خپل

پلار، نیکه او ورنیکه ایاز خان، محمد جانخان او نیک محمد خان غونډي د ټبرني مخور تیا ویاړ هم ور په برخه و .

د همدې مېړنیو تر ټولو مشر لکي ساپ خان و چې هغوی هم د خپل ژوندانه په مهال کښي چې د افغانستان د بنسټ ایښودونکي لوړ درشل غازي احمدشاه بابا د واکمنی پېتمن سیوری څېور و د لکو سیکو ښتن او د دې مهال د پر لوړ سپین روبی مخور او سوداګر و .

**زده کړه**

د اروا ښاد **پوهاند علامه رشاد** بابا پتمن پلار عبدالغفور خان خپله هم د خیر کتیا څخه پراخه برخه لرله او ورته د اوس مهال هینداري پر مخ ورته د زده کړي ارزښت څرګند و . د همدې څرګندتیا پر بنسټ یې د خپل هغه زوی له پاره چې هغوی یې په سترګو کښي د نبوغ څرک لیده د لوست چاري پیل کړې د نورو زده کړو تر څنګ یې د انګرېزي ژبې د زده کړي له پاره هم تابیا ورته وکړه . د پر ژر یې د ښتن د سپېڅلي کتاب ټول ویل سرته ورسول او د همهغه مهال دود کتابونه بوستان، ګلستان او پنج ګنج یې هم ولوستل .

د پنځو کالو سوچي و ښوونځي ته ورولوېد . په ښوونځي کښي هم د پوهنیزي وړ تیا له مخي ښه وځلېد ، او د ۱۳۱۲ لمریز کال په اوږدو کښي د ښوونځي څخه په لوړه درجه وزګار سو .

**دندي**

اروا ښاد **پوهاند علامه رشاد بابا** وروسته له هغه چې د ښوونځي څخه وزګار سو هغه ښوونځي چې د وخت غازي واکمن د خیلواکی ګټونکی لوړ درشل خوان امان الله شاه لا هم د دې ښوونځي څخه د لیدني پر مهال د دوی د وړتیا څخه د ستاینی ټکي لورولي وه ، د څه مودې له پاره یې کندهار په مطبعه کښي کار وکړ ، او بیا د دیارلسو کالو تنکی ځلمی و چې د ښوونکي په توګه یې دنده پیل کړه . هلته د لږ عمر له مخي هر چا د کوچني ښوونکي په نوم یاداوه .

د هغوی په ذهني بڼ کښي د خدای ورکړي نبوغ سپېڅلي غوټی روخ تر روځي غوړ پدې ، ذهني وړ تیا یې د


محمد معصوم هوتک، اروانباد **رشاد بابا** او عبدالقدوس نجیب

پرمختګ ، پراختیا او غښتلتیا پر لور غځېده .

دا هغه مهال و چې په چاپېریال کښي یې هم د روښان اندو د خوځښتونو له پاره څه لاره هواره سوې وه ، د ۱۳۲۵ لمریز کال شپې او روځې وې چې علامه رشاد بابا د کندهار ښاروالی د مرکې مشر او بیا څه وروسته د ښاروالی مرستیال وټاکل سو .

دا مهال ۱۳۲۷ لمریز کال په رارسېدو سو ، علامه رشاد هم د ۲۷ کلنو ځوان ځلمی وُ ، ورته د لوړو زده کړو د تر لاسه کولو تلوسه پیدا سوه او د هندوستان پر لور یې د یون موزې په ښو کړې ، په خپل ځاني لګښت یې هلته اووه کلونه تېر کړه او په ترڅ کښي یې د کږ کېښ ، ژبو او ادبي فنونو په برخه کښي ډیري کتني او څېړني وکړې . چې له بر کته یې (لودي پښتانه او سوري پښتانه) ولیکل سوه .

او په هندي ژبه ، انګرېزي ژبه ، دیوانګري لیکدود او سنسګریټ کښي یې بر لاسي وموندله . هیواد ته تر رارسېدو وروسته د ویښو ځلمیانو په استازیتوب له کندهاره ولسي شوری ته غوره کړه سو ، خو د کندهار د همهغه مهال د چارواکو له لوري یې په وړاندي د خنډونو په راز پرېدو سره تر همهغه ځایه ونه رسېد . کله چې ۱۳۳۵

لمریز کال راورسېد **پوهاند علامه رشاد بابا** د افغانستان په پلازمېنه د کابل په ښار کښي د پښتو ټولني د مسلکي غړي په توګه په کار پيل وکړ، چي وروسته يې د کابل پوهنتون د ادبياتو په پوهنځي کښي د ښوواند په توګه د لوست ورکولو ویاړ هم په برخه وُ .

څه لنډه موده وروسته د خپلو پوهنيزو وياړونو او خپلي ځاني وړتيا له مخي د پښتو ټولني د مرستيال په توګه په دنده وګمارل سو .

په ۱۳۴۱ لمريز كال كښي د پخواني شوروي اتحاد

د اروابښاد **علامه رشاد بابا** د فرهنګي لوړ شخصيت د ده د لوړو ارزښتونو او د كمال او جمال په بشپړ تيا پسولل سوي څېرې او د هغوى د پراخ فرهنګي چوپړ او ورسره د نورو لوړو ښېګڼو څرګند تيا او څېړنه د ناتوانو ليکنيو د وسه وتلي چاره ده . دا چاره د يوې بشپړي مسلكي موٌسسې او د قلم په څوكه د خبري علمي صلاحيت لرونكي ډلي په شتون كښي تر سره كېداى سي، دا ځكه چي هغوى كه د پوهي يو څپانده سمندر وُ نو د انساني حقوقو د ژوند له پاره يوه سپېڅلې ارزا هم وه .



اكاډمسين علامه رشاد د افغان راتلونكي نسل ستر روزونكى

لېننګراډ ته ولاړ او د ختيځ پېژندني په انسټيټيوټ كښي يې تر دوه نيمو كلونو پوري د پښتو ژبي د لوست وركولو چاري مخته يوړې .

هيواد ته تر رارسېدو وروسته د كابل پوهنتون د ادبياتو او بشري علومو په پوهنځي كښي د ښوواند په توګه پاته سو . په ۱۳۵۳ لمريز كال كښي يې د پوهنوالۍ لوړې علمي پوړى ته لوړ تيا وموندل او په ۱۳۵۶ لمريز كال كښي د پوهاند علمي رتبه ورته وركړه سوه .

په ۱۳۵۷ لمريز كال كښي چي د غوايي د مياشتي بدلون رامنځته سو لوى ښوواند **علامه رشاد بابا** د هغو ډېرو لومړنيو سړيو څخه وُ چي جبري تقاعد وركړه سو .

هغوى د فرهنګيانو، فرهنګپالو او د پوهي مينانو ته هر ګړى رسېدونكى پوهنتون وُ، د پوهي د دې روښانه لمر طوافونه او د هغوى د علمي لوړ مقام لمانځنه له دې امله چي د هغوى بېساري پوهنيزه وړتيا څواړخيزه وياړ درلود، هغوى د پښتو، پښتو كېدو ته پر پښتو لاسبرى وُ، انګريزي، اردو، روسي، عربي، سنسكريت او نوري ژبي يې هم د خپلي مورنۍ ژبي په ډول د پوهېدو تر لوړې كچي رسولي وې . هغوى په څېړنو څېړني كولې، هغوى په تاريخ و تاريخ ته ژوندون باخښنه، هغوى د پښتو ادب پر ككرى د تخليق او تحقيق په لاسونو بګړى كښېښوده .

**د رسمي دندو پرته ژوند**

اروا ښاد **پوهاند علامه رشاد بابا** د غوايي د مياشتي د کودتا وروسته تر ۱۳۶۱ لمريز کال پوري پر کور ناست وُ، او کومه رسمي دنده يې نه درلوده که د خپلي ميني او خپل ذوق د رسمي منځکيو ورونه يې پر مخ وتړل سوه، خو **علامه رشاد** يې په غبرگون کښي د پخوا څخه په څو چنده زياته کچه خپل کور د پوهي د وېش د پر لوی کانون وگرځاوه، او همهلته فرهنگيان، څېړونکي، ليکوالان او د پوهي او فرهنگ مينان پر راغونډ وه او خپلي پوهنيزي ستونزي به يې د دوی د پوهي په برکت اوارولي.

وروسته په ۱۳۶۱ لمريز کال د پوهنتون د محصلينو او د ده د پوهي د پتنگانو د پرله پسي غوښتنو پر بنسټ **علامه رشاد بابا** د هغوی د لوست له پاره او د پوهي د تر لاسه کولو له پاره بيا په نېغه توگه قبله وگرځېده، او يو کال وروسته د افغانستان د کاډيمی لخوا ورته د دوی د زياتو علمي او پوهنيزو هڅو سترياوو او زيارونو له مخي دې د پخوا څخه لا ښستن جوړ کړي اکاډميسين ته په رسمي توگه د اکاډميسين وياړلی علمي نوم ورکړه سو. **علامه رشاد بابا** ته په ۱۳۷۶ لمريز کال کښي د فرهنگي رغوني په وياړ د علومو اکاډمی د بشري علومو د برخي مسئوليت وردغاړي سو.

**د ژوندانه وروستي کلونه او د اروا ښاد رنځونه**

د ۱۳۶۳ لمريز کال شپې او روځي وې چي د اروا ښاد **علامه رشاد بابا** سپېڅلی او په علمي چوپړ ستړی زړه د لومړي ځل لپاره په رنځ خوږمن سو، او په دې توگه يې د زده کړيانو سره دلوست نېغه لړۍ هم پای ته ورسېده.

**علامه رشاد** د دې رنځ د درملني له پاره د جاپان هيواد ته ولاړ.

د ۱۳۷۶ لمريز کال په لېندۍ کښي يو ځل بيا د زړه د رنځ او د سترگو د روغتيايي درملني له پاره جاپان او بيا امريکي ته ولاړ.

تر څه مودې وروسته بيرته خپل گران هيواد هغه هيواد چي **علامه رشاد** ورسره بې کچه مينه درلوده راستون سو.

د ۱۳۷۸ کال د کب په مياشت کښي بيا د (۶) مياشتو له پاره جاپان ته ولاړ، او تر يادي سوي مودې وروسته بيرته بيا هم خپل هيواد ته راستون سو.



د اميرخسرو د سيمينار پرانستونکې غونډه چي د هندي ولسمشر فخرالدين علي احمد په وينا پرانستل سوه. په دغه عکس کي افغاني استازي (اروا ښاد احمدعلي کهزاد، اروا ښاد پوهاند عبدالشکور رشاد، پوهاند ميرحسين شاه) او د نظام الدين اوليا ... د زيارت متولي سيد ضامن نظامي ليدل کيږي. د سلواغې ۳ يمه ۱۳۵۴ ل وگيان بهون ـ نوی ډيلی، هند

**د اروښاد علامه رشاد بابا لومړني چاپ سوي کتابونه**

(۱) لودي پښتانه چي په ۱۳۳۶ لمريز کال کښي په ۴۱۵ مخونو کښي چاپ سوی دی او دوهم ټوک يې د ۳۵۵ مخونو په لړلو سره لا تر اوسه بې چاپه پروت دی .

**د اروښاد لومړني او وروستي شعرونه**

دې د لوړ نبوغ څښتن خپل لومړی شعر د خپل ژوندانه په ديارلس کلنۍ کښي ويلی دی او وروسته يې د فرهنګي چوپړ دا برخه تر هغه کچي غښتلي کړي چي د نورو شعري ټولګو سربېره يې د پښتنو تر غميزي پوري لا هم لاسونه را اوږده کړي. او خښمېدلې امريکا خو يې لا هم د تصور څخه د وتلي نړيوال لوېښت سره سره ټکولې او کوټلې ده. او د دوی شعري خښم خو لا هغه مهال د پر پراخ سوی چي (د واده کلي يې کربلا) ليدلی او په دې کربلا کښي يې (د وينو حمام) زړه خوړلی او د دوی سپېڅلي او حساس ذهن يې هغه ډول داغلي چي د بده مرغه د ژوندانه څه وروپاته شپې او روځې يې د ژمي د ماز ديګر غوندي ورته لنډي کړې .

لوی سوواند **علامه رشاد بابا** د خپلي خوږې مورنی ژبې سربېره په فارسي او اردو ژبو کښي هم ښه لاس درلود نو په دغو ژبو کښي هم د ښو شعرونو څښتن دی . هغوی پخپلو شعرونو کښي د غوايي مياشتي د کودتاچيانو او د دې مهال د واکمنو ناکردو ته په زغرده نغوتي کړي او د دې اداري ناسمي کړنلاري يې د ملحدشاهي په نوم او دې ته ورته ناخوالي يې د تنظيمونو د واک چلوني پر مهال د تنظيم شاهي او د طالبانو د واک په شپو او روځو کښي د طالب شاهي په نوم د شعري ټولګو په هره پاڼه کښي په کلکه ټکولي او غندلي دي . دا اروښاد علامه رشاد بابا وچي د شعر په تېره توره يې تل د ټولني د سمون له پاره ناخوالي او د جابرانو، تيريګرو او يرغلګرو غاړي څيري کړي دي، د هغوی د ژوندانه د وروستيو ورځو نظمي ليکني د هيواد د زامنو او لوڼو د وينو توئېدني په اړوند په هغونده زړه وريا ليکلي چي د عاملونو په وړاندي يې په نړيواله کچه د پرو خواکمنو او لور ته د تشو کتو زړه هم نه سواى ښه کولای .

له آره هغوی نه خپل شخصيت جمود ته ورکړی او نه يې د ذهني جمود لاره منله هغه هم په داسي حال کښي چي د جمود سيوری د دوی د سيوری تر څنګ مل او په سا ايستنه و. هغوی د دغسي ناخوالو په وړاندي جمود، د افغاني هويت، افغاني خصلت، پښتني همت، خپلواک ژوندانه او پلرني بګړی و شهامت ته پېغور ګاڼه .



فاضل استاد رشاد د جنوبي پښتونخوا د ليکوالو او پوهانو سره د خطي نسخو د کتلو پر مهال

**لومړني څېړنيزه ليکنه**

اروښاد **علامه رشاد بابا** د څېړنيزو ليکنو پيل د کندهار په تاريخي او ډېري مشري خپروني (طلوع افغان) کښي د ۱۳۱۷ لمريز کال څخه را پيل کړې او په دې لاره کښي يې دا وياړلی زيار تر هغي کچي غښتلي او پياوړي کړي چي د هيواد او هيواد څخه دباندي خپرونو کښي يې شمېره تر سلګونو پوري لوړه سوه .

**د دوی ليکني**

اروښاد **علامه رشاد بابا** د ګران هيواد د فرهنګي څلوني په لاره کښي د پر اوچت ګامونه پورته کړي د نورو علمي برياوو تر څنګ يې په څانګړې توګه د پښتو ادب او افغاني کړکېښ د پرمختګ او لا روښانتيا له پاره د ستايني او قدروني وړ زيار ايستلی دی. او ګڼ شمېر آثار يې

ځېړونکو، پوهانو، لیکوالانو او د پوهي او فرهنګ مینه والو ته ډالۍ کړي دي . د ارواښاد د چاپ سوو آثارو شمېر تر (۳۶) پوري رسیږي .

دا چي **علامه رشاد بابا** د مړیني و بستر ته د رسېدو تر ګړه لیکني د ګوتو وانه چاوه او خپل لوړ او پیاوړی استعداد یې د خدای ورکړي لويي او لوړي مینې او حافظې په لرلو سره په دې لاره کښي ګړندی او ژوندی وساته . نو ځکه یې زیات شمېر کتابي لیکني چي شمېر یې اویاوو پوري

شپو روځو پوري یې لا د همدې غورځنګ په نوم او نښان ویاړ کاوه او د طالبانو د واکمنۍ پر مهال یې په یوه غونډه کښي په ډاګه ښکاره کړه چي :

**{ زه وینښ ځلمی وم، یم او اوسم به }**

ارواښاد د خپل سپېځلي ژوندانه په ټول بهیر کښي د زور او زر په وړاندي خپله درنه ککرۍ کوږ نه کړه او خمېدو ته ونه سپارل، هغوی د زور واکي او بل واکي په وړاندي په کلکه ولاړ و. او په دې لاره کښي یې خپل ټول فکري ذهني



د افغانستان فرهنګي پلاوی د باړه ګلۍ په څېړنغونډه کښي د ګډون په سفر کښي
د زمري ۱۸ مه ۱۳۴۲ ل کال

رسیږي د سلهاوو مقالو په زیاتوب د ماشینونو تر ځګر پوري د رسېدو ځخه لا بې برخي پاته دي .

**سیاسي ژوند**

کله چي په هیواد کښي د ټولنیز رغاوي په لړ کښي د دیموکراسۍ د پلي کېدو په ویلاړ د سیاسي خوځښتونو څرګ ولګېد او ورسره په کندهار کښي د ویښو ځلمیانو غورځنګ رامنځته سو، ارواښاد علامه رشاد بابا ۲۶ کلن ځلمی و چي د دې غورځنګ د غړي په توګه دغه غورځنګ د هغوی د ګډون ویاړ تر لاسه کړ، او د ژوندانه تر وروستیو

او پوهنیز صلاحیت وګماره څو عاملین یې وغندل، وټکول او د لیکني په رېزمرېزه کوونکي څوکه یې وترټل او وکوټل . د ظالمانو د ظالمو لاسونو پورته کېده یې د مظلومانو او بېوزلانو پر ککریو باندي نه منلي او نه زغملي دي .

ارواښاد د خپلواکه او سرلوړي اوسېدو په بهیر کښي تل پردي، پردي بلل او د هغو ولور ته یې آن تش ور وهم نه کتل، د خپلو باتورو پلرونو او نیکونو غوندي د یوه متین سیاست پوه او په خپلواکۍ مین سرغنه جنګیالي غوندي د

خپل وخت هر غلیم. غلیم و گاڼه او د هغوی په وړاندي يې قلم ونه دراوه. تل يې د نمرودانو په وړاندي د ابراهيمي سپېڅلي لاري د پاسه په ويـاړلو گـامونو تـگ وکـړ او دا سرلوړي يون يې د مرگ تر پولي وپالی. او نور يې هم دې لاري ته وهڅول او د حق په لاره کښي يې د حق له پاره د سرلوړي او خپلواک ژوندانه په ارزښتونو وپوهول.

زموږ په ټولنه او یا زموږ ټولني ته په ورته ټولنو کښي دا ډول ککړی د پېر لږ ليدل کيږي هغوی که پوهه ويشله، مينه، ورين تندي، خوږه وينا، قدرداني، مېلمه پالنه او پوهي، پښتني همت، زړه ور تيا او د دوی د وياړلو تورو ځلا په ځليدو وه.

اروابناد تل د ټولنيز عدالت او د عدل پر بنسټ د سياست او سياسي کړنلارو د ټاکلو څخه ملاتړ کړی او تل يې په دغسي منلو لارو د اولس د رهي کېدو هيلي په خپل پاک زړگي کښي پاللي او روزلي دي.

**هیواد پالنه**

اروابناد **علامه رشاد بابا** د گران هيواد افغانستان په غېږ کښي څه نا څه د خوږو شپو او روځو په سبا کېدو سره د



د افغانستان فرهنگي پلاوی د ناړه گلی د څېړنغونډي د نورو برخوالو سره، د ښي لوري څخه لومړی نفر اروابناد پوهاند علامه رشاد بابا د زمري ۴ مه ۱۳۴۴ ل کال

دوستي يې هم وېشله. خپلواکي که يې خوښوله نور يې هم خپلواکی ته هڅوله. د خپل ژوندانه په بهير کښي يې جابرانو او د جابرانو مزدورانو او تالي ځټو ته ککړی نه ده کوزه کړې. د نورو له پاره يې هم نه خوښوله چي د پرديو او د پرديو تالي ځټو د وره رانجه دي په ستر گو کړي.

هغوی که لوړ قلمي صلاحيت او لوړه ذهني پراختيا درلوده د لوړ همت يوه داسي بېلگه هم وه چي پر تندي يې د میرويس خان نيکه او لوی احمدشاه بابا د تدبير، سياسي ژوندانه کاروان تر داسي پولو راورساوه چي د گوليو او باروتو د لوگيو پر ته نوړ څه نه تر ستر گو کېده. دا چي د استوگني سيمه ورته د ويشتلو، وژلو، سوځلو، شړلو او ټکولو په يوه سوځنده منځکي اوښتي وه. لا هم دوی پکښي واوسېده. د چا سره چي هيڅ نه وه ولاړه د دوی سره چي هر څه وه همدلته په خپله خوښه او د خپل سپېڅلي ضمير په حکم واوسېده.

هغوی تل دا ويله چي که مي د هيواد او د اولس تر څنګ خوږې شپې سبا کولې اوس بايد د هغوی سره د ترخو او بدو روځو په تېر کښي هم ځان ګوښه نه کړم .

ارواښاد **علامه رشاد بابا** ځرګنده کړې وه چي د هيواد سره زما مينه په هغه کچه ده چي د ايمان سره پر تله کېدای سي . هغوی همدلته نړۍ ته ستر ګي پرانستې، همدلته وروزل سو، همدلته وپالل سو، همدلته يې ژوند وکړ، همدلته يې ساو رکړه او همدلته په همدې خاورو کښي خاورو ته وسپارل سو .

**مېلمه پالنه**

د **علامه رشاد بابا** او د هغوی کور که يو بشپړ پوهنتون وٌ ور سره د هر چا له پاره د مېلمه پالني يو ستر کانون او يو درونـد مېلمستون هم وٌ . ارواښاد به د خپل کور د لوړي کوټې د تندي په برخه کښي د خپلو يو شمېر کتابونو په منځ کښي ناست وٌ خپلو مېلمنو ته به يې په ورين تندي د هر کلي او ښه راغلاست کلمې وراندي کولې . پوښتنه او ګروېږنه يې هم د دود څخه ډېره لوړه او په زياته دوستانه او خوږه لهجه به يې پر مخاطب د کلماتو لوريني کولې .



پر علمیت سربېره د ارواښاد رشاد بابا د تقوا په نورانیت ښکلې څېره
د ۷۷ کلنۍ په درشل کښي، د لړم ۲۳ مه ۱۳۷۶ ل کال

زموږ په ټولنه کښي د دود خورک او چښنګ وروسته به يې په پوهنيز لمر سره د مېلمنو زړونه او ذهنونه ټکور او ورسته به يې د همدې کوټې تر وره پوري د مېلمنو د تګ پر مهال د بدر ګي کړ او هم په ډېره پېرزوينه سره ګاله او د هغوی سره به يې مخه ښه او خدای په اماني تر سره کوله . بالآخره هغوی د قدرداني، دوستي او خواخوږي په برخه کښي يوه درنه او بېساري بولګه ايزه څېره وه .

**نوري ښېګڼې**

ارواښاد **علامه رشاد بابا** د زياتو ښېګڼو څخه د جوړ سړيتوب څښتن وٌ هغوی د ظاهري او باطني جمال او که دا هر څه را لنډ سي د يوه بشپړه کمال لرونکی وٌ. انسان يې د انسان په توګه پاله، د انسان سره د مينې او خواخوږۍ کچه يې ډېره هسکه او لوړه وه هغوی د پوهې تر څنګ د لوړ همت، زړه ورتيا، لوړو اخلاقو او درنښت څخه برخمن پښتون وٌ، چي پښتونولي يې رښتيني او د هره اړخه سوچه وه د نورو ښېګڼو د يادولو پر ځای يې د پښتونولی همدا سوچه والی د ګڼو او بېساري ښېګڼو له پاره بېساري ثبوت دی .

دغه لوړ او ستر پوه د دې هيواد په ګوټ ګوټ کښي د هر چا وٌ. او د هر چا سره د هغوی مينه بې ساري وه، د هغوی پراخ زغم او ورين تندي بې جوړی وٌ، د دوی د سپېڅلي تن په سپېڅلې سينه کښي د دوی سپېڅلی زړه وهر چا ته د مينې کور وٌ .

**د ژوندانه په وروستيو کښي د هغوی د ستايني غونډې**

د **علامه رشاد بابا** د وياړلي ژوندانه ۸۱يم کال په پېلېدو وٌچي د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست په نوښت د بڼ پل (باغ پل) په مېلمستون کښي يوه لويه غونډه

د یو شمېر چارواکو او ګڼ شمېر لیکوالانو، پوهانو او شاعرانو په ګډون رابلل سوي او په ترڅ کښي یې زیاتي مقالې او شعرونه وویل سول .

همدارنګه د ۱۳۸۲ لمریز کال د مرغومي په یوویشتمه په جلال آباد کښي د یوې درنې څېړنغونډې په ترڅ کښي ارواښاد ته د علامه بېساري او درووند لقب ورکړه سو .

**مړینه**

ارواښاد **پوهاند علامه رشاد بابا** د همدې روان کال ۱۳۸۳ د لېندۍ پر یوولسمه نېټه د چهارشنبې په روځ د هیواد په پلازمېنه کابل ښار په څلورسوه بستریز روغتون کښي د ماپښین پر دوولسو بجو او د پرشو دقیقو د زړه د وریښې ناروغۍ له امله سترګي پټي کړې . او په دې توګه د لوی ښوانند **علامه رشاد بابا** د پتمن ژوندانه روښانه او ځلانده لمر د دې هیواد د فرهنګي هسکه پر پووت او د فرهنګ په ټولو اړخونو کښي یې داسي تشه رامنځته کړه چي د دوی د شتون پرته به په همهغه ډول چي دوی د خپلي بېساري پوهي او وتلي خوځنده لیکنې په برکت ډکه کړې وه ډکه کړه سي .

که لوی استاد ارواښاد پوهاند علامه عبدالحی حبیبي د وروستیو منل سوو پوهانو لمر وګڼو نو ارواښاد علامه رشاد بابا د دې وياړلي ډلي پنځم ستوری دی چي د هغوی پر لاره یې د هغوی په ډول د بېلتانه یون ته مخه کړه .

د ارواښاد **علامه رشاد بابا** په همدې یون سره د اړنګ پرته نور نو د اوس له پاره څېړنه، ژبپوهنه او ادبپوهنه سرتوري سوه، افغاني او پښتني کړ کېښ د یوه خواخوږي او زړه سوانده پلار د پتمن سیوري څخه بې برخي سو او په تللو یې د لوی کندهار، هیواد، سیمې، ختیځ او د نړۍ په بېلابېلو ګوټونو او اړخونو کښي د فرهنګي سرېو او کړیو څخه هغه فرهنګي ارواوي چي د دوی د بډایې او غښتلي فرهنګي چینې څخه بې اوبه خور مونده ایستل سوي دي .

دا پوهاند علامه رشاد بابا وُ چي د وياړلي ژوندانه هر ګړی یې د خپل خدای ورکړي نبوغ او ستري پوهنيزي وړتیا له مخي د خپل لوړ ذهن او خواکمن لیکنې په مرسته د اوولسيزو په موده د خپلو خلکو د تاریخي او لرغوني پېژندني او د هغوی د پوهنيزي لاځر ګند تیا فرهنګي بډاینې، برم او غښتلتیا په لاره کښي په بریالیتوب سره د زیاتو او سترو هلوځلو سره تېر کړ. کومه لاره چي ارواښاد پوهاند علامه رشاد بابا د کړ کېښ او پښتو ژبې او ادب د ځلېدو او پیاوړتیا له پاره پرانستې وه په همدغه کچه او همداسي پوهنيز صلاحیت او وړتیا باندي د هر چا د توان څخه وتلي او نه شونې چاره ده . هغوی پر دې لاره یون د کندهاره پیل کړی او په کندهار کښي یې د (کندهار د تاریخ په اوږدو کښي) څېړنغونډې کښي چي د جمهور رئیس په فرمان او د اطلاعاتو او کلتور وزارت په هڅو او په کندهار کښي د اطلاعاتو او کلتور ریاست په خانګړو نوښتونو او لوړ سمون سره تر سره سوه د دې اوږده او ستر یون د وروستیو شپو روځو دمه وکړه . او په خپل فعال او لوړ پوهنيز صلاحیت سره یې دې غونډې ته د پر لوړ وياړ وباخښه .

ارواښاد د ژوندانه په دې یاده سوې موده کښي په بېلابېلو مزلونو کښي بېلابېل فرهنګي څلي ودرول چي تر ډېره به یې تر سیوري لاندي د هیواد خوان فرهنګي لارویان د راتلونکي یون له پاره ځانونه غښتلي او پیاوړي کړي او که یې د تل له پاره د دوی پر پلونو او ورسره د غوره اخلاقو، مینې، خواخوږۍ، دوستۍ، مېلمه پالنې، لوړي قدراني او نورو ښېګڼو تر نورانیت لاندي د تلني دا بهیر وغځېږي نو به د پښتنو اتلانو او منلو سروالانو د هیلو پولو ته رسېدل څه ستونزمنه خبره هم نه وي .

ارواښاد علامه رشاد بابا د خپلو غازي او مجاهدو نیکه ګانو غونډي د جهادي سپېڅلو ولولو په لرلو سره په نېغه ککړي او لوړ سر وپاڼېد، واوسېد او همداسي یې د تورو خاورو تر غېږي خان ورساوه .

وياړ دي وي پر داسي سړیو او همداسي هسکو ککړیو .

د همدې هسکي ککړۍ بېلتون د یوه ژوندی او هر چاته په هر ګړي کښي د رسېدونکي پوهنتون د سپېڅلي وره تړون دی . خو د خوښی خبره په دې کښي ده چي که دا ژوندی پوهنتون د بېلتون پر لاره سم سو د هغوی د لوړ او بېساري پراخ ذهن او ستړي لیکنې څخه په لاس راغلي هر توری، هره کلمه، هره جمله، هر څپرکی هره لیکنه او هر کتاب د دوی غونډي د فرهنګي ستونزو او فرهنګي غوټو د اوارېدو او غوړېدو او اخځ زیرمي دي او په همدې وياړونو که ارواښاد علامه رشاد بابا ژوندی وُ همداسي به یې نوم او نښان ژوندی او تلپاته وي .

د ارواښاد علامه رشاد بابا سپېڅلې او په فرهنګي چوپړ ستړې ارواه دي تل خوښه وي .

عبدالقدیم پتیال

# د علامه رشاد

# د نثر او نظم هنري اړخ

لاندني ليکنه د ارواښاد **علامه رشاد بابا** د نثر او نظم پر هنري اړخونو څه نا څه رڼا اچوي . البته په تفصيل سره نه . بلکي په ډېر لنډ ډول . ځکه چي دا ډېره پراخه (Vast) موضوع ده او کتابونو ته اړتيا ده چي پر وليکل سي . خو دلته يې مازې يادونه سوې ده . هيله ده چي درانه څېړونکي په تفصيلي توګه کار پر وکړي .

"**پتيال**"

نن روخ که څوک د **علامه رشاد بابا** نوم يادوي . نو له ورايه يې په ذهن کي د څېړني . تاريخ ليکني ، ژبپوهني او متن پوهني نوم انځوريږي . ما چي تر اوسه د **علامه رشاد صاحب** په باب کومي ليکني ليدلي دي . نو هغه اکثره د دوی پر تحقيقي . علمي او تاريخي اړخونو را چورلي . کله_کله داسي يادونه کيږي چي ده شعرونه هم ويلي او شاعر هم و . کله_کله داسي ويل کيږي چي ده هنري نثر هم ليکئ . مګر تر اوسه خو زما داسي ليکنه نه ده تر ستر ګو سوې چي په هغه کي دي د ده پر شاعری او د نوي هنري يا داستاني نثر په باب څېړنه سوې وي . يوازي ښاغلي زرين انځور يوه ليکنه په سکلا مجله کي د ( **استاد رشاد او د پښتو نوی داستاني هنري نثر** ) په نوم خپره کړې ده چي په هغه کي ښاغلي انځور د **علامه رشاد** د هنري نثر په باب څېړنه کړې ده . خو لکه څنګه چي ښاغلی ليکوال په خپله وايي چي دا مي په تفصيل سره نه ده ليکلې . نو رښتا هم دا ده چي د استاد د هنري نثر د ځانګړنو يادونه پکښي سوې ده او بس . په هر صورت موږ د زرين انځور ليکنه پر سر او ستر ګو منو او دا يو نېک او درونډ ګام بولو .

تر پورته سرليک لاندي زه غواړم چي د خپل وس تر ټکه د **علامه رشاد بابا** د علمي ژوند پر هنري اړخ وړغېږم چي په هغو کي هم شاعري ، هم ليکوالي او هم ژباړه راتلای سي .

نن که موږ پر پښتو هنري نثر ږغيږو . نو لومړی د هنري نثر د لومړی دورې د ليکوالو يادونه را څخه کيږي چي په افغانستان کي پښتو هنري نثر په ابتدايي او مقدماتي ډول را پيل سو . ور پسې د هنري نثر دويمه دوره شروع کيږي چي پـه هغه کي لومړی د علامه حبيبي ، استاد بېنوا ، پوهاند رښتين . استاد الفت او بيا ور پسې د ارواښاد پـژواک او **علامه رشاد** نومونه دي . چي دغه سلسله او لړی بيا وروسته پسي وغځېدل او پښتو هنري نثر نږدې د اوج مرحلې ته رسيږي .

دا چي په دغو ښاغليو او درنو ليکوالو کي کوم يوه څونه او څنګه کار وکړئ . دلته زموږ آره سکالو نه ده او پر تليز شکل نه لري . زه يوازي دلته د **علامه رشاد بابا** د هنري نثر پر ښېګڼو او ځانګړنو د خپل توان تر بريده رڼا اچوم .

الف علامه رشاد د هنري نثر د ليکوال په توګه

دا سمه ده چي **علامه رشاد بابا** په علمي ژوندانه کي تر ټولو زياته پاملرنه د څېړني خوا ته کړې وه او موږ که يې د آثارو نيوليک ګورو نو په سلو کي پنځه نوي به د څېړني او تحقيق په ډګر کي ليکل سوي وي . خو **علامه رشاد بابا** د يوه لوی مؤرخ او عالم تر څنګ يو هنرمند هم و . يو شاعر هم و او يو داستان ليکونکی هم . **علامه رشاد** له ځوانی څخه شعري طبع لرله او همدغه لامل و چي کله_کله يې شعر هم

وايه او هنري نثر يې هم ليکئ . دا چي نن روڅ موږ دی د يوه شاعر او هنرمن په توګه ډېر نه يادوو . لامل يې دا دی چي ده هم په شعر کي او هم په هنري نثر کي ډېره توجه د فکر خوا ته کوله او په اصطلاح (Idealist) نه و . نو ځکه زموږ په ټولنه کي دی د يوه (Idealist) شاعر او ليکوال په توګه نه پېژندل کيږي او هر کله چي څوک خيال پرستي و نه پالي ، په ځينو ټولنو کي چنداني نه مطرح کيږي . زموږ د اوسني ادب د ټولو پوهانو دا نظر دی چي **علامه رشاد** د يوه پاخه او غښتلي فکر خاوند و . همدغه لامل و چي د فکر دغه پوخوالي يې پر شاعرۍ او ليکوالۍ اثر غورځولی و ، خو داسي نه وه چي هنري خوا دي يې ور پيکه کړې وي .

کله_کله داسي پېښ سوي دي چي د فکر دغه ډېروالي يو هنري اثر پيکه کړی وي خو د **علامه رشاد بابا** لويه خانګړنه او کمال (Perfection) همدا و چي په خپل هنري ادب کي يې هم فکر او هم په اصطلاح خيال په مناسب ډول ځای کړي دي .

دا چي ځيني ښاغلي وايي چي **علامه رشاد** د فکر له پلوه غښتلی و . خو په ليکوالۍ او شاعرۍ کي يې لفظي ښايست نه تر ستر ګو کيږي . زما په نظر يو څه د تامل وړ خبره ده . ځکه چي موږ وړاندي وويل چي **علامه رشاد** په هنري ادب کي د رياليزم پلوی و او همدغه علت و چي کله_کله به يې د شاعرۍ او ليکوالۍ لفظي ښايست فکري ځلا تر شعاع لاندي راوستی . اما دا خبره کله_کله پېښېدله او هر وخت يې موږ د ده په اثارو کي نه سو ليدلای . تاسو ګورئ د **علامه رشاد بابا** لاندنۍ هنري ليکنه او وروسته به لږه رڼا پر واچوو :

**جګي ماڼۍ او وربښميني جامې**

نور څه نه و . صرف د مستيو بې واکو قهقهو چي کله به د نڅا يو سپک مګر زړه پاڅوونکې او کله به د خوږو نغمو يوه نرۍ په پرده نغښتې مګر زړه وړونکې ازانګه هم په ګډېدله . د هوا څپې يې سره ر ېردولې . هلته د دې عيش او طرب په شخول کي يو مړژواندی ژګېروي کي کله به د "خيل لالئ" رېږدېدونکې معصومانه ږغ هم ور سره و . د هوا څپو نه سپارل کېدی . . .

دا غوڼاشکي د يوه خوارژواکي واړه ماشوم وې چي د تروږمې د شپو يوه تېره ماخوستن په توره دربيله کي له يخه کپڼی اخيستي او اوله ترغوني ماښام څخه د يوې وچي سرې ګولې په نامراده هيله د جګي ماڼۍ په لوی تړلي وره پوري زنګېدئ .



ليکوال او علامه رشاد بابا ۱۳۸۲ ل کال

د يتيم ماشوم آواز د استرحام له ډيرو نارو څخه دربدلی و . ږغ يې تر خوله نه ختئ . د وروستي ځل له پاره لوږي او يخ مجبوره کړ . په داسي حال کي چي ستونی يې له غريو ډک_ډک کېدی او ساه يې په سينه کي نښتله د خپل وروستي ږغ "خيل لالئ" سره يې لڅه ککرۍ د جګي ماڼۍ پر کلک درشل ونښته .

په دې ترخ کي يو ښوزله ښځه چي چتکو . مګر بې سکو ګامو او پلټونکو مګر رنځورو کتو يې جدي تلاش او طلب څر ګداوه . دغي خوا ته را ورسېدله . په خورا تپاک

يـې ور وخغسـتل او هغـه نـيم بربنـد لاس يـې پـه خـورا مينـه پـه زړه پـوري ټينـګ ونيـو چـي مـخ تـه يـې وکتـل ، ناڅاپـه يـې يـوه سـوړ کريـږه تـر خولـه وختلـه او پـه داسي حال کي چي شونډان يې له ژړا مرۍ ـ مرۍ کېدل ، وويل

"خواره کونډ کـي مـور دي تـر تـا وګرځـي . هغسـي دي خان تر خپلي معصومي ناپوهـی جـار کـړ چـي سـرې دي پـه جګـو مـاڼيو او زړونـه دي پـه ورېښمينـو جـامو کـي پلټل" . (کنـدهار مجلـه ، ۵۶مـخ ، د ۱۳۸۱ لمريـز کـال د سلواغې او کب نهمه ګڼه) .

پـه پورتنـي ليکنـه کـي د **استاد** فکـري ، هنـري ، ملـي او ټولنيز اړخ ښه تراخر ګندېږي . کله چي په افغانستان کي د لومـړي ځـل لپـاره پـه بنسـټيز ډول د فيـوډالي نظـريې پـه وړاندي علمي مبارزه شروع سوه ، نو زمـوږ درنـو پوهـانو پـه دغـه مبـارزه کـي فعالـه ونـډه واخيسـتل ، پـر ېنځـو سـتورو سرېېره نورو پياوړو پوهانو هم پـه خپلـو هنـري هسـتوونو کـي دغه اړخ ته خورا زيات پاملرنه کوله ، په دغه باب ډرامې ، ادبي ټوټې ، ناولونه او شعرونه وليکل سول ، چي په هغو کي يو هم **علامه رشاد بابا** و .

موږ که پورتني ليکنه په ډېر لنډ او مختصر ډول تحليل کـړو ، نـو بـه وايـو چـي دغـه ليکنـه هـم لـه فکـري او معنوي لحاظه او هم له هنري پلوه ډېره غښتلې ، پخه ، ښکلې او پـه زړه پوري ده ، موږ کـه پـه دقيـق ډول پـه افغانسـتان کـي د پښتو هنري نثر پر تاريخ ږغېږو ، نو زه دا په واز کومي ويلای سم چي د پښتو هنري نثر له پيله بيا تـر دې دمـه چـي هـر څـه ليکـوال او هنـري ليکنـي سـته ، د **علامـه رشـاد بابـا** پورتنـي ليکنه يکښي اوچت مقام(Position) لـري او د لومـړي صـف په مخ کي دريږي ، په پورتني ليکنـه کـي فکـري څـواک ، د جملو اوډون ، لفظي ښايست او د ليکني بشپړ هنريت موږ تـه دا اجازه راکوي چي ووايو :

"کله که موږ وغواړو چي د پښتو هنري نثر په ځانګړي ډول ادبي ټوټې ترپوال ډګر ته د سيالۍ لپاره وړاندي کـړو ، نو د استاد الفت ، استاد بېنوا او علامـه حبيبـي د ځينـو ادبي ټوټو تر څنګ مو ږ په ېبغمه زړه د **علامه رشاد** پورتنی ليکنـه هم سيالی ته وړاندي کولای سو" .

د تراژيدي ادب په ساحه کي هم د دغي ليکني استری جملې لومړی مقام(First position) لري چي

"خواره کونډ کـي مـور دي تـر تـا وګرځـي . هغسـي دي خپل خان تـر خپلـي معصومي ناپوهـی جـار کـړ ، چـي سـرې دي پـه جګـو مـاڼيو او زړونـه دي پـه ورېښمينـو جـامو کـي پلټل" .

**علامـه رشـاد** د ادبـي ټوټـو تـر څنـګ کلـه ـ کلـه ځينـي خاطره ډوله ليکني په خورا لوړ هنري انداز کي بيان کـړي دي ، يا په بله اصطلاح ځيني لنډ يونليکونه يې په ډېر اوچت هنري ډول کښلي چي دا کـار د پخـې دورې پـه ليکوالو کـي اروابناد عبدالهادي داوي(پرېشان) کړی چي ځيني خـاطره ډوله ليکني يې د هنري نثر په اسلوب کي منځتـه راوړي دي او بيا اروابناد پوهاند رښتين هم ځيني لوی او واړه يونليکونه پـه خـورا لـوړ هنـري انـداز کـي ليکلـي ، چـي (د هنـد سـفر) يونليک يې ډېر مشهور دی .

دغسي خاطره ډوله هنري ليکني **استاد علامه رشاد** تـر بـل هـر ليکـوال ډيـري کښلـي او مـوږ کـه د پښتو هنـري نثـر تاريخ کاږو او په هغو کي د هنري خاطرو په بـاب ږغيـږو ، نـو تر ټولو به علامه رشاد ته لوی مقام ورکـړو . د (شرم ، شـرم ، شرم) په نوم لنډه هنري خاطره زموږ د دې خبري ښه اثبات کولای سي :

**شرم، شرم، شرم**

پـه يـوه اخبار کي مي ولوستل :

د ۱۹۸۸ع کـال د جنـوري وروسـتی روځـي وې ، اسـتراليا تـه د اسـتعمار ګـرو د ورتـګ دوه سـومه کـاليزه لمانځل کېدله ، پـه دې ويـاړ د سـدني پـه بنـدر کـي او د هغـه بندر پـه ولاړو کښتيو کـي يـو پـرتمين جشـن جـوړ سـوی و . د سـدني ځـه خلـک پـه شـوق ، حتـی ځينـي پـه ويـاړ پـه دغـه جشن کي د ګډون لپاره د سدني بندر ته رهي وو .

د دوی پـه لار کښي دواړو خـواوو تـه د وطنپالو استعمار دښمنو ځوانـانو کتارونـه ولاړ وه ، د شـرم ، شـرم نـارې يـې وهلې او پـر بيرغـو يـې دغـه شـعار ليکلـی و ، خـوبې شـرمه پردې پاله په دغو شعارو بند نه وه ، ستر ګي يې رډې نيولي وې او د خپـل ملـک د اسـتعمار او اسـتثمار پـه جشـن کـي د ګډون لپاره مخ په وړاندي روان وه .

ما چـي دا خبـر ولوستو لـه شـرمه خولې را بانـدي ماتـي سولې ، چا وپوښتېدلم :

څه در وسوه؟ ما په جواب کي ور ته وويل :

په کابل کي مي د سرو لښکرو په مخـه ښي مناظره پـه خيـال کـي را وګرځېدلـه او ومـي ليـدل چـي وطـن پلورنکـو پرچميانو او روس پالو خلقيانو د افغاني پيغلو په پاکو لاسونو کـي د ګلـو ګېډۍ هغـه آدمکشـانو تـه وړانـدي کـولې چـي د ګران او وران افغانستان ګوټ ـ ګوټ يې د ملک د غير تمنو

ځوانانو په وینو رنګولی دی . (کندهار مجله ، ۷۰ مخ . د ۱۳۸۱ لمریز کال د سلواغې او کب نهمه ګڼه) .

خاطره د هنري نثر له ډېرو مهمو ژانرونو څخه شمېرل کیږي . د نړۍ ډېرو لویو لیکوالو له خاطره لیکنې سره زیاته علاقه لرله . ځینې مستندې پېښې به یې د خاطرې په فورم کې په داسې هنري انداز بیان کړې چې کله ـ کله به یې ارزښت تر ناول . لنډې کیسې . ادبي ټوټې او ډرامې زیات سو .

بالکل را څخه پاته ده او د ګوتو په شمېر لیکوالو څه نا څه خاطره ډوله هنري لیکنې کړي دي چې په هغو کې **علامه رشاد** تر ټولو دروند او ځلاند ځای لري . تاسې یې لاندنۍ خاطره ولولئ چې په څونه لوړ او هنري انداز را پیلیږي

**داسې وزیران هم پیدا کیږي**

دا پېښه دوه ویشت کاله پخوا پېښه ده . خو زما د پرونۍ پېښې په شان په یاد ده . د دیارلس سوه شپږ



الکساندر نیکولایویچ بالدیرو د لیننګراد د ختیځ پېژندنې د پوهنځي د ایراني شعبې مدیر او پوهاند رشاد ـ ډسمبر ۱۹۶۳ پوهاند صاحب خپل لیکلی اثر "د پوولسم ټولګي پښتو قرائت" نوموړي ختیځپوه ته تدریسوي

په پښتو کې هنري نثر لیکنه ډېره وروسته را پیل سوې ده او د هنري نثر هر فورم اوس هم زیات وخت او زیار غواړي چې د اوج مرحلې ته ورسیږي . البته د هنري نثر پر هر فورم کار سوی دی . خو دغه ماشوم نثر لا د ځوانۍ دوران ته نه دی رسېدلی .

د دغه نثر په ژانرونو کې یوه هم خاطره ده چې له بده مرغه په پښتو کې هیڅ کار نه دی ور ته سوی او سوړ که نن دعوه کوو چې موږ د هنري نثر هر ژانر پاللی دی . دا به سهي وي چې لنډه کیسه . ناول . ډرامه . پونلیک . طنز او ادبي ټوټې ته به مو یو خاشه قدر کار کړی وي . خو خاطره لیکنه

څلویښتم هجري شمسي کال دوبی و . د اسد د دوهمې هفتې پیلامه وه . په کابل کې د خطي نسخو نړیوال کنفرانس جوړ سو . د دوولسو هیوادو پوهانو ګډون پکښې درلود .

د جمعې په روځ د کنفرانس د ګډون کوونکو پوهانو په ویاړ د پغمان په یوه شنه او سمسور بڼ کې د غرمنۍ مېلمستیا جوړه سوې وه . زه هم دې مېلمستیا ته بلل سوی وم . . په دغه روځ د پغمان هوا د کابل د ښار تر هوا تقریباً پنځه شپږ درجې سړه وه . د ګلوله تنکیو پاڼو سره د نریو وړمو شوخیو د مشکو نافې وښلې . په لښتیو کې به د رڼو

اوبو شور د نغمو له زړه وړونکي موسيقيت سره کله داسي هم آهنګي کوله چي تا به ويل دا هم د راکسټر جز دی ، غرمه ډېره ښه تېره سوه ، پر بمانه خوندور خواړه وو ، هري خوا ته د يارانو مجلسونه وو ، ټوکي ټکالي وې ، خندا وه ، خوشحالي وه ، ساز سرود ، اتڼونه وو ، پاکه پر بولې او خوشګواره سره هوا وه ، د ګلو موج و ، داسي ښکار ېده چي طبيعت په دغه روځ د رنګ او بوی او طراوت هيڅ سامان نه وسپمولی ،

هر څه تېر ېده لري ، مېلمستيا هم پای ته ورسېده ، مېلمانه يو په بل پسي رهي سول او بېنوا د کوربه په توګه ټولو مېلمنو ته په مسا او صميمانه لهجه په مخه ښه وويل ، کرار _ کرار مېلمانه ټول له باغه ووتل ، لوی استاد علامه حبيبي ، بېنوا او زه سره پاته سوو او څه به کوو؟ چيري به خو؟ پوستني را منځته سولې ، بېنوا له خپل خصلت سره سم په صميميت وويل

زه وام په کابل ښار کي ګرمي ده ، د دوبي اوږدې روځي دي ، تر مازيګر پوري به دلته پاته سو ، د پغمان دا سره هوا او د طبيعت دا تازه ګي ګوره چي بيا کله ميسره سي؟ د ملا پير محمد کاکړ خبره ده :

**در بغه ګل به د ګلزار وي مور به نه يو**
**د بلبل به پري چيغار وي مور به نه يو**
**د زړه يار به مو افسوس پر مزار کاندي**
**تور ليمه به يې خونبار وي مور به نه يو**

نور نو ستاسو خوښه ده .

د بېنوا پيشنهاد ومنل سو او موږ درې سره د پغمان د تپې باغ ته راغلو ، دوري هوري وګرځېدلو ، تر مازيګره پوري مو ښه سات تېر سو ، لمر و غر چي سره نږدې سول ، د تللو په تکل کي سوو ، موټر ته راغلو ، موټروان چي په ډېره تلوسه زموږ لاره څارله ، را وځغستل ، په ډېر ادب يې د موټر دروازه پرانيستله ، بېنوا له خپل عادت سره سم د موټر په مخکي کښېناست ، لوی استاد او زه د موټر په شا کي کښېنستلو ، موټر مخ پر کابل را وخوځېد ، خواجه مسافر ته لا څه ځکل لار پاته وه ، څو تنه سپاهيان مو وليدل ، د سړک ښي څنډه يې اخيستې وه ، يوستوي کتار غوندي پلي مخ پر کابل رهي دي او د هر يوه پر اوږه يوه _ يوه کيزه ځړيږي ، د سر سپاهي ته چي زموږ موټر ور ورسېد ، هغه په ډېره چټکي يو ګام د سړک منځته را وړاندي سو او لاس يې داسي اوچت کړ چي د موټر د درولو مانا خني اخيستل کېده ، موټروان چي د هيواد يو وزير يې په څنګ کي ناست و ، د سپاهي دغي غوښتني ته په خورا بېپاکي وکتل او په ډېره استغنا يې د موټر ستهرنګ کيڼ لور ته تاواوه ، چي بېنوا پر ږغ کړه "ودرې" موټر ودرېد ، بېنوا د موټر دروازه خلاصه کړه ، په ډېره مينه او مهرباني يې پر ک مشر صاحب وپوښتي

څه وايې؟ پر ک مشر وويل

صاحبه ! څو سر کاري اسان مو پغمان ته راوستل ، چي دلته د پغمان په تازه هوا کي څو ورځي ښنه وخوري ، اسان مو مهترانو ته وسپارل موږ پلي پاته سوو ، تاسو مو وينئ چي پياده مخ پر کابل رهي يو ، لمر د غره سره ورغلی دی ، را باندي شپه کيږي ، هيڅا موټر را ته و نه دراوه او موږ . . .

بېنوا د دغو خبرو له اورېدلو سره سم د موټروان څنګ ته ښه ور وځغېدی او سپاهيانو ته يې وويل "" را خېژئ" دوه تنه له ده سره په مخ کي ځای سول ، څلور تنه د موټر په شا کي زما "**رشاد**" او لوی استاد سره د اړې د غاښو په خېر تېر و بېر کښېنستل او درې تنه اسکېرلي سپاهيان پر ميدان پاته سول ، بېنوا موټروان ته وويل

د شورليټ موټر ټول بکس لوی او پراخ دی ، دوی هم هلته ځايږي ، موټروان چي دا وار وېدل هر ياني يې نوره هم پسي زياته سوه ، مګر څه يې کړي وای ، مجبوره و چي جلالتمآب حکم يې پر ځای کړی وای ، سر يې وښوراوه ، په خورا بې خوندي له موټره تا سو ، ټول بکس يې خلاص کړ ، دريو تنو پاته سپاهيانو ځانونه په ټول بکس کي داسي ځای کړل چي څګرونه يې پر څنګنو ايښي وو ، موټروان چي سپاهيان په ټول بکس کي سپاره کړل ، له خوله خلاصي ټول بکس څخه يو ګام تر شا سو ، د موټر شا و خوا ته يې په ځير _ ځير وکتل ، په خورا حسرت يې سر وښوراوه ، زما په خيال ده به په زړه کي ويلي وي "دا د وزير نازولي موټر ، لس تنه د منخ سپرلي او درې تنه د ټول بکس سرباري")؟ . . . (ښکلا مجله ، لومړی کال ، لومړی ګڼه _ ۱۲ ، ۱۳ مخونه د علامه رشاد بابا ليکنه) .

پر دغسي خاطره ډوله هنري ليکنو سربېره **استاد علامه رشاد بابا** ځيني داستاني نثرونه هم کښلي چي البته بشپړ داستان او يا په بله اصطلاح معاصره کيسه نه سوو ر ته ويلای ، خو په خپل وخت کي دغسي هنري ليکني د پښتو داستان لومړنی بولګې بلل کيږي ، لکه څنګه چي لوی استاد علامه حبيبي په ۱۳۱۲ لمريز ، ۱۹۳۳ ع کال کي په طلوع افغان کي ،، (سرو زرو ګيند) په نوم د پښتو داستان لومړنی بولګه ، ښته راوړه او بيا يې په ۱۳۱۵ لمريز .

۱۹۳۶ ع کې د (تور یالی پښته) په نوم حماسي کیسه ولیکل او پښتو داستان لیکنې ته یې لاره هواره کړه. همدا ډول **فاضل استاد علامه رشاد** هم د هنري داستاني نثر په برخه کې دغسې هڅې کړي دي. په دغه برخه کې نورمحمد تره کي هم ځینې کیسې کښلي دي چې هم د کمیت او هم د کیفیت په لحاظ تر پوهلو وړاندې دي. خو علامه رشاد هم وخت نا وخت دغسې داستانونه کښلي او که د پښتو هنري نثر د سرلارو یادونه کیږي او په هغو کې د داستان لیکونکو ذکر کیږي. نو موږ په هیڅ صورت د **علامه رشاد بابا** نوم نه شو هېرولای. کله نا کله ځینې کره کتونکي دا ادعا کوي چې داسې لیکنو ته موږ بشپړ داستان نه سو ویلای چې دا ادعا یې تر ډېره ځایه پر ځای هم ده. خو داسې داستانونه د پښتو هنري نثر له لومړنیو بیلګو څخه ګڼل کېدای سي. تاسو د **علامه رشاد** لاندنی لنډه کیسه ولولئ

**له عمره یې واخلې، پر عقل یې ور واچوې**

د کندهار په کلیو کې زنګاوات یو لوی کلی دی. د دغه کلي په یوه برخه کې چې ګرندي نومیږي. په یوه کور کې یوه سپین سرې مور او خوانی ته نږدې یو زوی یې اوسېدل. زوی یې حسن نومېده. چې مور به له نازه حسني باله. همزولو به د کونډې زوی هم باله. دی پر مور د سر تر ستر ګو ګران و. دوی یوه غوا درلوده. کونډې به چرګې بلله چې د برګې مانا لري. د دوی ستونی په چرګې لوند و. حسن به په لښتیو او یخرو ځمکو کې پوولې. د جودو واښه به یې هم ور ته راوړل. کله به یې پټه د چا پټي ته هم ور خوشې کوله او د غلا شپیشتې به یې هم کله کله یوه پلنده راوړلې. د پټي یا شپیشتو خاوندان چې به په خبر سول. ببوزلي کونډې زوی سره به یې غالمغال جوړ کړ. کونډې به ور ته ویل "وروره! چادې دی خدای دې ور وسپي. د بې عقلی دې کور وران سي. په خبره یې سر نه خلاصیږي. څه وکړم یو نس واسه. یا یوه پلنده شپیشتې چې په غوست در څخه وغواړي. زه باور لرم د کلي خلګ بې نه ځني سپموي. تاسي د خیر خلګ یاست او د دغه مغزي ماتي پلار. ور پښمین فقیر هم پر تاسي ګران و. خدای دې یې وبخښي. ستاسي سره دې هم خدای ښه وکړي. ښه خلګ یاست. هر وخت موږ ما او زما د چادي زوی غم خوړلی. رښې چې واخیستلي شي. ستاسي په ښېنو موږ چلیږو. پر سر او مال مو برکت سه. بیا په حسن ستاسي بې اجازې دا کار نه کوي. دا پلا یې وبخښئ"

داسې شخړې به په هفته دوو کې یو وار هرومرو پیښېدلې. حسنی د چا په خوابدي نه وبند. له چا څخه غوښت یې هم نه خوښېده. خواره مور یې په غم ور سره اخته وه. حسن نه یوازې دا چې له چا څخه بخښنه نه غوښته. کله به یې لا سلام هم دغسې کلیوالو ته نه ور اچاوه او په مغزي به ځني تېر بده.

یوه شپه د کلي خان او ناظر سره په خبرو کې ناظر ته وویل. سبا راشه اخیستله کیږي. د پرش منه غم د ور پښمین فقیر کونډې ته ور کړئ. که څه هم د کونډې زوی ملاماتې په دې نه ارزي. خو ور پښمین فقیر ښه سړی و او کونډه یې هم خورا ښه ښځه ده. خدای دې یې پت وساتي. پر موږ حق لري.

سبا سهار چې ناظر پټي ته تی. د ور پښمین د کونډې کره یې ور ږغ کړه: "حسني بیا را ولېږه. نن راشه اخیستله کیږي. خان ویل یو پېټی غنم به ور کړم"

کونډې ور ته وویل "خدای مو وسیله سه. خان ته دې خدای په ښه ستر ګه وګوري. ښه دی حسنی به در ولېږم. د ور پښمین کونډې دستې یو جوال را واخیست. ځیر ي او موږ کاتو خوړلي ځایونه یې ور وګنډل. ټک یې واهه. کټ یې کړ. حسني په ماجت کې و. سبق یې وایه. له دغه امله به ځینو خلګو ملا کوچنی باله. مور یې پلو پر غاړه سم کړ. د ماجت دروازې ته ورغله. حسني ته یې ور ږغ کړه. حسني راغی. مور په ډېر مابت ور ته وویل "نن د خان راشه اړوله کیږي. خدای دې خیر ور کړي ناظر راغی ویې ویل. خان ویلي دي د ور پښمین فقیر کونډې ته یو پېټی غنم ور کړه. حسنی را ولېږه. ما جوال وګانډه. کټ مې ایښی دی. خواره مور دې تر وګرځې ته به جوال واخلې. د خان مځکې ته به ولاړ سې. چرګې به هم در سره بوزې په وړ کې به هغه خان مړوي. تا ته چې وار در ورسېد خپل غنم به په جوال کې واچوې. ناظر به یو مردار هدی در کړي. کور ته به یې را ورسوې. هله ژر کوه بلا دي واخلم. چې در باندي نا وخته نه سي ما هم په وړ کې وږي پول کړي دي. هغه به وکوټم. یو ځای به یې بیا ژرندي ته یوسې. د برکت سي هله! هله!

حسنی کور ته راغی. جوال یې واخیست او چرګې یې هم تر جلو ونیوله او د خان د مځکې پر خوا رهي سو. مور یې تر یوه ځایه پسې کتل. دی چې له ستر ګو نهام سو. مور یې په کور ننوتله او د غړ کې په شاربلو یې پیل وکړ.

حسني د خان مخکې ته ورغی . چرګې يې په وړ کې ايله کړه . دی د رشې خوا ته ورغی په ناظر يې ځان وليد . ناظر ور ته وويل : " حسنيه راغلې؟ دلته کښېنه چې زما لاس خلاص سي . ستاسي غنم به در وتلم" .

حسني کښېناست . ناظران او بزګران د رشې په اړولو بوخت وو . د کلي ملا ، مير او ډم او د کلي څو خواران هم راغلي وو چې ناظر وزګار سي او د دوی برخې ور جلا کړي . حسني يو ساعت ، دوه انتظار وکيښ . خلق يې تنګ سو . ناظر ته ورغی او په ترخه لهجه يې ور ته وويل : زه به تر څو ناست يم؟ ناظر ور ته ور ته وويل : حسنيه لږ تم سه ! ملا صاحب ، صاحبزاده صاحب او زرغون کاکا ټول انتظار باسي ، چې زما لاس خلاص سي . ستا برخه غنم به هم در وتلم . تلوار نه دی په کار .

حسني له ځانه سره غوم ـ غوم درلود . تندی يې تريو نيولی و . راغی پر خپل ځای کښېناست يو سات بل هم تېر سو . ناظر ملاصاحب ته د ذکات برخه ور جلا کوله . حسني بيا ور ولاړ سو او ناظر ته يې خطاب وکړ : " ته په به خبره نه پوهېږې؟ زه به تر څو په انتظار ناست يم . د خان دي خدای کور خراب کړي . چې ته يې ناظر کړی يې " .

ناظر چې ستړی سوی و ، د حسني بې باکيو ودرداوه او په قهر يې ور ته وويل : " هم فقر کوې او هم دي خر لغتي وهي " پر حسني دا خبره خورا بده ولګېده . ناظر ته يې وويل " خدای دي يې در څخه واخلي . تاسي نو اوس بيخي خدايي ږغوئ" حسني خورا په قهر له غونډې را ووت . چرګې يې تر جلو ونيوله . څه يې له ځانه سره ويل ، د کور پر خوا رهي سو . ناظر د ستر ګو تر ګوښو په حسني پسي کتل . حسني چې يې وليد کور ته روان دی ، پسي ږغ يې کړه " او حسنيه ! او هلکه لږ تم سه . وار به ژر در ورسيږي " .



د کيڼ لوري څلورم تن ارواښاد علامه رشاد بابا ، د خپلواکۍ جشن ورځ ، لينګراد د غبرګولي ۶مه ۱۳۴۱ ل کال

حسني تر شا ور ته وکتل او په قهر يې ځواب ورکړ : ځان ته يې ور کړه !

ناظر سر وښوراوه ، له ځان سره يې وويل " بې عقل دونه په بل نه کوي ، لکه په ځان " .

کونډې ستر ګې دروازې ته نيولې وې چې اوس به نو حسني له پېټي سره کور ته راسي ، که ګوري حسني تش لاس ، جوال پر اوږه ، نيمه مړه چرګې تر جلو نيولې په دروازه را ننوت . مور يې ور ږغ کړ : " لکه چې نن راشه نه اخيستله کېده؟ " حسني چې چرګې په غوجل کې تړله . مور ته يې په خورا درد بدلې ږغ وويل " خانان خدايي کوي . خدايي او ناظران پاچاهي کوي . پاچاهي څلور ساعته مې ور ته تېر کړل . ناظر لا د ملاصاحب د ذکات له حسابه نه و خلاص . څو کسه نور هم تر ما دمخه راغلي وو ، چې هغه به يې خلاصوله نو ما ته به يې وار ما زيګر را رسېد ، د ناظر دي خدای کور ډاګ کي له خانه سره . زه خو د دوی نوکر نه يم چې ټوله ورځ به د يوه پېټي غنمو لپاره د دوی په دروازه کې ناست يم . روزي رسان خدای دی . خدای . ناظر لا دا هم وايي چې هم فقر کوې . هم دي خر لغتي وهي .

کوندي سر وسوراوه . په ډېر ارمان يې وويل "چادي تور وي که سپين؟ ناظر سه در ته ويلي . د روزي کاسه چي په لغته وهي هغه د حسني غوندي چادي وي".

حسني مور ته وويل "ادې ! ته هم عجبه ښځه يې . روزي رسان مو خداى دى . ناظر بابايي کوي . بابايي ما ويل خان ته يې ور کړه".

مور يې په خورا حسرت وويل "مغزي ماتي ! ما ته خو ستا خوله را معلومه وه . خداى خبر څه نوري ناخوالي به دي تر خوله راايستلي وي . خدايه ! له عمره يې واخلې . پر عقل يې ور واچوې . (ورېښم مجله ، ۵_۶_۷ مخونه . د لومړي کال دويمه گڼه . ۱۳۸۳ لمريز کال دوبی) .

دغسي کيسې نورمحمد تره کي ، دوست شينواري ، حبيب الله تري او خينو نورو ليکوالو په خورا زياته پيمانه کښلي چي بيا هم د طبقاتي او فيوډالي نظام په وړاندي مبارزه ور ته ويلاى سو . د خوارانو او بېوزلانو پر حال ژړا او د فيوډالي سستم په وړاندي يوه سستماتيکه جگړه ور ته ويل کيږي . استاد په پورتني کيسه کي د يوې غريبي او وړې کورنى حال بيانوي . د يوې کليوالي بېوزلي کونډي حال او د ژوند کړه وړه يې په ډېر ښه هنري انداز سره اوځار کړي دي .

همدا ډول **علامه رشاد** خيني څېړنيزي ليکني هم په خورا هنري انداز را پيلوي او په لومړي سر کي څوک دا گومان کوي چي گواکي دا يوه هنري ليکنه ده خو هغه به تحقيقي موضوع وي چي داسي نثرونه او د ليکنو پيل موږ په لومړي خل د علامه حبيبي په ليکنو کي ليدلاى سو . چي دا هم د دوى پر هنري څواک دلالت کوي . اوس نو موږ په ډېر لنډ ډول ويلاى سو چي **علامه رشاد** د پښتو هنري نثر د دويمي دورې په ليکوالو کي ځانته بېل او لوى مقام لري او دغه کړى يوازي **علامه رشاد** له دريمي دورې (معاصري دورې) سره نښلوي او په معاصره دوره کي هم **علامه رشاد** ځانته جوت مقام لري .

**ب ژباړه**

**علامه رشاد** د خپل علمي ژوند په جريان کي ډېري هنري ژباړي هم کړي دي چي د خپل لومړي دور په ليکوالو کي او بيا د دويم دور په ليکوالو کي ځانته په دغه برخه کي بېل ځاى لري . استاد رشاد خيني کيسه ييز آثار په پښتو کي په خورا روان او هنري ډول ژباړلي او خيني ادبي ليکني يې هم له بېلابېلو ژبو څخه په ډېر هنري انداز کي ترجمه کړي دي .

**علامه رشاد** خيني کتابونه په خورا ښکلي ډول پښتو ته رااړولي دي:

۱ . د ليو تولستوى دري نکلونه . د ۱۹۶۱ ع کال چاپ .

۲ . سل متله ، په اوو ژبو . دغه اثر په څلورو ټوکونو کي ليکل سوى دى . دغه متلونه په پښتو ، فارسي ، عربي ، انگرېزي ، اردو ، روسي او ترکي ژبو ليکل سوي دي . د دغه اثر قلمي نسخه ما (پتيال) ته **علامه رشاد** را ښکاره کړې ده چي که خداى کول هر وخت د چاپ موقع ور ته برابره سوه او تاسو درنو لوستونکو ته په چاپي بڼه دغه کتاب در ورسېدی ، نو هله به پوه سئ چي په څونه لوړ هنري انداز کي ليکل سوي دي ، دغسي هنري ژباړه او بيا په دغسي بېل سبک سره ما خپله تر اوسه د متل په برخه کي نه ده ليدلې .

ما (پتيال) ته **اروابناد علامه رشاد** د اروښاد استاد بېنوا يو ليک را ښکاره کړ چي د هغه ليک په يوه برخه کي ليکل سوي وو:

ما هم ډېري ژباړي کړي دي ، ډېرو کسانو خوښي کړي دي او حتى داسي هم ويل سوي دي چي استاد بېنوا په پښتو ليکوالو کي د ژباړي په برخه کي تر ټولو لومړى دى . خو ما چي کله ستا (**رشاد**) خيني ژباړي وکتلې ، دا را ته ښکاره سوه چي تاسي تر ما ښه ژباړه کوئ .

۳ _(۲۰۰۰) دوه زره روسي متلونه په پښتو ژبه . په دغه ژباړه کي هم دوه زره روسي متله پښتو ته په خورا هنري او ښکلي ډول را اړول سوي دي .

۴ _ بې لاسو ښځه ، دا يو روسي فولکلوري نکل دى چي **علامه رشاد** په ښکلي او هنري ډول ژباړلى دى چي په دې وروستيو کي چاپ سوى دى .

همدا ډول **استاد علامه رشاد** د ياگور د خينو آثارو ژباړي او يو شمېر نوري هنري ژباړي هم کړي دي چي د پخو ليکوالو د ژباړي په برخه کي درونه ځاى لري .

لاندني ليکنه، د علامه بابا له ژباړو څخه ده:

**د مينى نغمه**

آزمامينه !!

غرمه چي زه پخپل واک کي يم، ستا د مونډلو ځوب(اشتياق) نه وي را سره. دا ځکه چي زه پخپلو خورو ورو خوبو کي وينم چي د نړۍ درستي هيلي په لاس را وستلای سم او په دغو خوبو دونه ډاډه يم چي وايم "دنيا زما ده"

هو! په دغه وخت کي زما د نغمو تارونه د هوا ځپې ګډي وډي کړي. نو زمامينه! زه تا ته اړه نه يم. زه پخپلو نغمو مسته او سرشاره اوسم. ته هم د لوی دریاب پر غاړه کښېنه او د خپل روح د هوسايي اسباب راټول وه. زه ارامه يم.



د لومړي ځل له پاره د زړه له خوږه پوهاند رشاد بابا په روغتون کي ليدل کيږي ۱۳۶۳ ل کال

***

مګر په نيمو شپو کي:

کله چي ټول کائينات بيده وي او د سهار تودې وږمې لا نه وي خپرې.

کله چي تور غرونه يو په بل پسي خواشين ولاړ وي او ګوري.

کله چي د لويو دريابو کومي چپ وي.

کله چي يو پر تم پر نړۍ غوږ ېدلی وي.

آزمامينه!!

زما روح ستا د ږغ لپاره توسيږي. ناغمې مي سړې سوي دي. هسي خوشي چيغي مي تر خولې خيږي.

آزمامينه!!

کله چي زه تا بولم. يو طلسمي ږغ ځنګل په خوښه ډکوي.

اې ما ته را تېره!!

د لوی دریاب له پوري خوا خپل روح را ولېږه چي زما د روح سره همنوا سي.

(کندهار مجله، ۱۳۸۱ لمريز کال، د سلواغې او کب د مياشتي نهمه ګڼه. ۸ مخ).

پورتني ليکنه په بشپړ هنري ځواک سره ژباړل سوې ده. دا سمه ده چي آره ليکنه به ليکوال په دغسي هنري ډول ليکلې وي. خو د دغسي ليکنو ژباړه څه اسانه کار نه دی. موږ په پښتو کي ډېر داسي هنري ليکني لرو چي را ژباړل سوي دي. خو چي په اصلي ژبه وکتل سي، نو خوند يې تر ژباړې زر چنده ډېر وي. خو که موږ دغه ليکنه په خپله آره ژبه کي وګورو. فکر نه کوم چي تر دغې ژباړې دي لږ څه هم نوره خوندوره وي. د ټاګور ګيتانجلي چي استاد بېنوا په پښتو ژباړلې ده. ما له ډېرو ليکوالو څخه اروېدلي دي چي هغه په خپله آره ژبه کي دونه خوند نه لري لکه استاد بېنوا چي په پښتو ژباړه کي ور زيات کړی دی. يوه درانه او پياوړي شاعر دغه ګيتانجلي په اردو ژبه کي ويلې وه. خو دونه خوند يې نه وور کړی لکه په پښتو کي. يوه پروفيسور بيا همدغه ګيتانجلي په انګرېزي کي لوستلې وه. خو ويل يې چي په قرآن که يې د پښتو په نسبت هيڅ خوند کاوه. داسي هنري ژباړه په موته نه سي کېدلای. دا بشپړ هنري ځواک ته اړتيا لري چي په همداسي ببل هنري انداز کي وژباړل سي، که څوک خپله هنرمن نه وي، نو دا هيڅ امکان نه لري چي دغسي هنري ژباړه وکړي. که څه هم پر هغه ژبه به بشپړ مسلط وي.

**علامه رشاد** هم دغسې هنري ژباړې په دغه ډول کړې دي لکه استاد بېنوا چې ګیتانجلي ژباړلې وه ، پر همدغه نسبت استاد بېنوا ده ته تر ټولو لوړ مقام ور کوي .

**ج شعر**

زه دلته نه غواړم چې د **علامه رشاد صاحب** پر شعر وږغېږم او نه یې دلته څه ګنجایش سته . بلکي زه غواړم چې د **علامه رشاد** په شعر کې د ده د هنري اړخ یادونه په ډېره لنډه توګه وکاندم . ځکه موږ به دې لیکنه کې د علامه بابا د نثر او نظم پر هنري اړخ وږغیږو ، نو فکر نه کوم چې د دوی د شعر پر هنري اړخ وږغېدل به له دې موضوع څخه لیرې والی ولري .

هر کله که موږ وغواړو چې د **علامه رشاد بابا** پر شعر وږغیږو ، نو موږ به دی د یوه ریالیست او یا په بله اصطلاح د یوه ټولنیز (Societal) شاعر په نامه یادوو . ځکه دوی په خپلو تقریباً ټولو شعرونو کې د وطن ، خلګو ، ولس او ټولني ناخوالو ، دربدریو ، غمونو ، دردونو او رنځونو ته اشاره کړې ده . د ویرجنو پر حال یې ژړلي او د ظالو په وړاندې یې مقاومت کړی دی ، هر وخت چې دغسې شاعري کیږي نو د ځینو ایډیالیستانو په وینا هنري اړخ یکښې ور کیږي ، خو د علامه بابا په ځینو شعرونو کې موږ د دغو ایډیالیستانو د وینا بر عکس ځینې هنري اړخونه هم لیدلای سو ، تاسو د دوی لاندنی شعر ولولئ :

چې ساقي په ګردش راسي نوشانوش سي
محتسب د هغه بزم پرده پوش سي
زاهدان د خُم و پښو ته ناست وي ژاړي
ناصحان وینم چې ځي سبو په دوش سي
له مستي نه د آدابو تر خند ووزي
صوفي واچوي خرقه باده فروش سي
عابدان له مغنیو سرود واخلي
عشق چې موند سي نامو ننګ ځي فراموش سي
چې دباندي یې تش نه کاته له نازه
خوبان ګوره بې حجابه چې مدهوش سي
هنګامه د جانبازی پټې بر پا کا
ډک د شمعي په رڼو اوښو آغوش سي
لېونی ځنځیر په پښو کي پاځي ناځي
چې قلقل د صراحیو یې په ګوش سي
هیڅ آواز یې تر پرده نه وزي ګوره !
دا کمال د میخانې چې خُم په جوش سي
د کمال نمونه عین خاموشي ده
د مزله په رسېدو جرس خاموش سي
"پر بکېده له بېګانه مونده کېده دي"
هر سحر د عشق پر غولي دا سروش سي

بله نمونه یې :

نازولو ! زړه زما سه قربان ستاسي
زړه لا څه چې جار سه واړه جهان ستاسي
چې له نورو مینو ستون سوم که تل سوځم
غاړه نسمه ایستای د احسان ستاسي
په آستان کي مې دې ښخ کاندي د ښکلیو
پر پښوولای په مرګ نه سم دامان ستاسي
پټنهان یې د مزار پر شمعو سوځي
هر ماښام لري تلېنه شهیدان ستاسي
له هر داغه یې د غم چینې خوټکیږي
هیڅ کوګل نه سي سهلای هجران ستاسي
اطبا مي په تشخیص د درد کي ورک سول
رنځوران د میني غواړي درمان ستاسي
راولي په ښور محفل د دلباخته وو
په هر شرنګ کي د ځنځیر لېونیان ستاسي
د زلفینو رشتې زړونه په دام نیسي
له نور قیده آزاده دي بندیان ستاسي
کوم مانع به یې بېل نه کاندي په عمر
د دردمنو زړونو لاس و ګرېوان ستاسي
زه "**رشاد**" به څنګه سر له تاسي ژغورم
پر جهان باندي چلیږي فرمان ستاسي

له پورتنیو دوو بولګو څخه موږ دا په ډاګه ویلای سو چې **علامه رشاد** بالکل یو هنري شاعر هم و او په شعر کي یې هنر په هغه ډول څای کړی ، څونه چې ښایي .

**علامه رشاد بابا** د حمید ماشوخېل له شاعرۍ سره زیاته مینه لرله او تل به یې ویل چې زه هر وخت د حمید مومند شاعري تر مطالعې لاندې نیسم ، څېړم یې او تحلیلوم یې ، همدغه لامل و چې کله_کله به یې د هغه د سبک پر اصولو شاعري هم کوله ، په تېره بیا د ځوانی پر مهال یې اکثره وخت د حمید مومند د شعري سبک په رڼا کي او بیا د کندهار د ادبستان د مکتب په چوکاټ کي شعرونه لیکل ، چې د کندهار ادبستان هم په لوی سر کي د حمید مومند له شعري مکتب څخه سرچینه اخلي .

موږ که د کندهار د ادبستان د شاعرانو یادونه کوو ، نو په هغوی کي به ارومرو د **علامه رشاد بابا** د نامه یادونه کوو ، یو وخت په کندهار کي د کندهار د ادبستان په

شعري مکتب کې ځينو شاعرانو په خورا جانانه ډول شاعري را پيل کړې وه چې په هغوی کې ملا رحمت الله بابا، محمد حسين ريدی، محمد رسول مسلم، صالح محمد، عبدالرزاق هېښ، محمد نسيم نوري، عبدالنبي عزيزي، **علامه رشاد** او ځيني نور د درنې يادونې وړ دي.

هغو شاعرانو د هندي سبک پر اصولو ډېر شعرونه را منځته کړل، هغه غوښتنې چې هندي سبک غوښتې، دغو شاعرانو هغه ومنلې. د کندهار ادبستان ته يې يو نوی شعري خوند او رنګ ور کړ، ډېر هنري شعرونه وليکل سولو خو په دغو ټولو کې **علامه رشاد بابا** ډېره پخه او هنري شاعري وکړه. نن روغ که موږ د هغې دورې په باب څه ليکو، نو خامخا به **علامه رشاد** ته پکښې لومړی مقام ور کړو او دا لومړی مقام موږ دوی ته پر دغه هنري شاعرۍ ور کوو.



مصلحت له مخې ويل، هسې نه وچې دوی دغسې شاعري نه سوای کولای او يا يې تر دې وړاندې نه وه کړې. بلکې د وطن وروستيو ناخوالو دې خبرې ته اړ ايستی و چې پر رياليستيکې شاعرۍ ټينګار وکاندي. خو زما سره د **علامه رشاد بابا** بيخي ډېر داسې شعرونه سته چې په ځوانۍ او يا د عمر په منځنۍ دوره کې ويلي دي چې ټول پر ايډياليستي نظريې ولاړ شعرونه دي او هغسې چې يې ځان په رياليستيکې شاعرۍ کې تر ډېره ځايه ورساوه او آن (۹) يا (۱۰) شعري ټولګې يې ټول دغسې رياليستيکې شاعري وکړه. خو د دې سره په څنګ کې ډېره لوړه او پخه هنري شاعري هم کړې ده. نو څکه موږ اوس ويلای سو چې **علامه رشاد بابا** ډېره هنري شاعري هم کړې ده او لکه څنګه چې يې هنري نثرونه کښلي، همداسې يې هنري شعرونه هم کښلي او په دغه برخه کې يې ځانته يو بېل ځای موندلی دی. زما خو تر دې ځايه دغونه وس و چې يوازې او يوازې مې د **علامه رشاد بابا** د نثر او نظم د هنري اړخ يادونه په ډېر لنډ ډول وکړه او يوازې مې له ښاغلو څېړونکو څخه دا هيله ده چې پر دغه پراخه موضوع باندې کار وکړي او لکه څنګه چې اړينه ده، چې د دوی د نثر پر نورو برخو باندې هم بايد کار وکړه سي، همدا ډول، بايد د دوی د نثر پر هنري اړخ هم ليکنې وسي.

اروښاد **فاضل استاد اکاډېمسين پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** به هر وخت ويل او يوازې ما په ځو ځو کرته دا خبره څنې اورېدلې ده چې شاعري بايد د ټولنې لپاره وسي، شاعر بايد ځان ټولنې ته وقف کړي، شعر بايد داسې وليکل سي چې هر سړی په پوه سي او اشاره به يې رياليستيکې شاعرۍ ته کوله. ويل به يې چې نن روغ زموږ خلګو ته، زموږ ټولنې ته او زموږ ولس ته ايډياليستي شاعرۍ څه ګټه نه لري. خو دا **علامه رشاد بابا** د يو

تلپاته شخصیت

# اکاډمیسین پوهاند علامه رشاد

کاکا اسدالله پوپل

نړۍ په خپله پراخه غېږ کې نوموتي اتلان روزلي او د هغوی د ژوند د مبتکرو مغزونو څخه یې د بشر د ژوند د سمون لپاره پوره ګټه پورته کړې . د هغوی په ژوند او د هغوی د ژوند څخه وروسته د هغوی د کار او زیار و زحمت ثمره په مختلفو برخو کې نورو ته رسېدلې ده .

زموږ هیواد هم په خپله غېږ کې د علم، ادب او هنر داسې نوموتي پوهان زېږولي چې په هیواد او سیمه کې د څېړونکو، ژبپوهانو، شاعرانو او د ادب او فرهنګ په چارو کې منل سوي شخصیتونه څني جوړ سوي او د هیواد د افتخار ویاړ یې موږ ته را په برخه کړی، په ځانګړې توګه کندهار د تاریخ په اوږدو کې د ادباوو او فضلاوو مرکز ګرځېدلی دی .

د دې خبرې د اثبات لپاره فاضل کندهاري علامه حبو اخوندزاده . کاکا سیداحمد . مولوی صالح محمد . علامه عبدالحی حبیبي . پوهاند عبدالروٴف بېنوا او ستر پوه اروابناد **پوهاند اکاډمیسن علامه عبدالشکور رشاد** د پښتو یوه بېساري بېلګه او د افغانیت ځلانده لمر وٌچې په همدې وخت کې له دارالبقاء څخه و دارالفناء ته وکوچېدی .

د هیواد او سیمې منل سوي څېرې او بېلګې دي. د هیواد ستر نامتو پوه او ویاړلي څېرې **علامه پوهاند عبدالشکور رشاد** د ۱۳۸۳ لمریز کال د لېندۍ په ۱۱ نېټه تر غرمې وروسته د یوې بجې په شاوخوا کې د ۸۳ کالو په عمر خپل سپېڅلی ژوند د هیواد نورو فرهنګیانو او فرهنګیالو ته وباخښه . د دغه غم لړلي خبر په اورېدو سره د هیواد ټول علمي او فرهنګي شخصیتونه په ځانګړې توګه د دوی د پلرني ټاټوبي کندهار فرهنګي ټولني او فرهنګیال شخصیتونه چې د دوی مړینه یې د هیواد او سیمې د پوهې ملي شتمني ګڼل د ناورین پر ټغر کښېنول .

د دوی مړینه یو طبیعي امر و، موږ منلی دی خو دا باید هېره نکړو چې موږ د پښتو، ژبې، څېړنې، نقد شعر او ادب یو داسې دروند او عظیم انسان چې د پوهې یو بې پایانه بحر و د لاسه ورکړی، هغه د افغان ولس لپاره د یووالي، ورورولی، وطن دوستی یو عظیمه هستي وه چې تر ډېره پوري به یې دا غم لړلې پېښه د ولس پر زړونو نقش وي .

د علامه پوهاند **عبدالشکور رشاد** مړینه چې د هیواد او سیمي لپاره یې د ژوندي تاریخ حیثیت درلود یوه نه ډکېدونکې خلا رامنځته کړه چې ځای به یې د ډېر وخت لپاره خالي واوسې :

**لـــــحده قـــدر یې د پـوهې وکړه**<br>**د ژبپوهني ســــــــمندر مو در وړی**<br>**چي یې وجود په غـبږ کي ښه وساتې**<br>**د شعر، ادب، تاریخ یو غر مو دروړی**

دا ځکه چې علامه اکاډمیسن پوهاند **عبدالشکور رشاد** خپل ټول ژوند د افغان قومونو، ملیتونو او ژبپوهني په څېړنو کې تېر کړ، هغه به ویل، هغه به لیکل، هغه به نظر وړاندي کاوه، هغه څېړنه کول، هغه څېړونکی نقاد و، هغه پر ویناوو، لیکنو او د نظر یو بر نیمګړ تیاوو او ناسمونتیاوو نیوکي کولې او خپل نظر یې هم څر ګنداوه، د هغه څېړني له نیوکي سره او نیوکي د څېړني سره مل وې . هغه یوازي د نورو د لیکنو

په وړاندي سختګیر نه و، هغه خپله لیکنه او څېړنه بیا بیا ساده او کره کوله او بدواینه یې زیاتوله، هغه ډېري لیکني کړېدي چي یوه اندازه یې چاپ سوي او د ولس د ذهنیت د روښانه کولو او د پوهنیزي لوړوالي لپاره یې ټولني ته وړاندي کړې. خو د همدغه کره کتنیز عمل په لړ کي د هغه ډېر کتابونه لا ناچاپ پراته دي.

ارواښاد پوهاند **علامه رښاد** نه یوازي څېړونکی، تاریخپوه، د افغان قومونو او ملیتونو او ژبپوهني څېړنه کوله کورني استبداد لړۍ راخپرې سوې نو دوی به د خپل قلم په څوکه د رڼا یوه کرښه پکښې راتېره کړه او نخښه به یې پکښي وکړه کله چي به په هیواد کي د دموکراسی خبري تر حد زیاتي سوې نو ده به دموکراسي په خپله رښتیني څېره په خپلو شعرونو کي راپورته کړه هغه د شاوخوا خبري به یې د ننداري صحني ته راایستلې. کله چي به بهرني یرغلګر افغانستان ته په بېلابېلو نومونو راغلل ده به په صراحت، جرئت، فصاحت او بلاغت باندي د هغوی د



ارواښاد علامه عبدالشکور رښاد او پوهاند میرحسین شاه په هندوستان کښي د امیر خسرو بلخي د څېړنغونډې د نورو برخوالو سره ۱۳۵۴ ل کال

بلکي د خپلي تاندي ځوانی څخه یې د شعر او ادب سره پراخه مینه درلودل او له هغه وخته څخه یې د خپل ځپاند استعداد له امله شاعري پیل کړه.

د استاد د شاعری لویه ځانګړتیا دا وه چي ملي محتوی یې درلوده او د هیواد حساس موضوعات یې پکښي رانغښتل. ده عقیده درلوده چي شعر باید ژوندی محتوی ولري او دا محتوی په پخو او ښوولو الفاظو کي راونغښتل سي. ده ټول عمر شعر وایه او د زماني له رنځونو او نیرنګونو سره یې مقابله پکښي وکړه، کله چي به پر هیواد د ښکېلاکي مخونو څخه پرده پورته کړه او حماسي ساندي به یې انځورولې او د ټولو دوستیو او دښمنیو موخي به یې داسي څرګندي کړې:

**په نړۍ کي که دوستی که دښمني دي**<br>
**خپلي ګټي خپلي وټي یې محور دي**<br>
**خپلي پیښي، خپلي خوښي خپل مرادونه**<br>
**په بشر کي دا میراث د خیر او شر دي**

د فاضل استاد پوهاند علامه اکاډمیسن **عبدالشکور رښاد** ادبي نثرونه هم په خوږه، پسته، هنري او

ملي ژبه ليکل سوي او ملي موخي پکښي ټاکلي دي . د زړه ويني د استاد يوه نسبتاً لويه خپره سوې ټولګه ده، څو نوري وړې شعري ټولګي يې هم خپرې سوي دي او د شعري طنزونو زياتي برخي يې لا ناچاپه پاته دي .

استاد د نبوغ تر کچې پياوړی او لوړ استعداد درلود . پنځه کلن و چې په ښوونځي کې داخل سو، ښوونځي ته تر تلو دمخه يې قرآن عظيم الشان ختم کړی، د سعدي بوستان او ګلستان او نور مروج فارسي کتابونه يې لوستي او د فقې شريفې په زده کړه يې پيل کړی و، د کندهار د ګنج په ښوونځي کې يې تر يوولس کلنۍ پوري زده کړه وکړه، په ښوونځي کې د هغه د لياقت اوازه دونه خپره سوه چې کله اعليحضرت امان الله شاه غازي کندهار ته راغی نو د ګنج ښوونځي ته د کوچني زده کړي **عبدالشکور** (اوس زموږ د هيواد وياړلی تلپاتی شخصيت علامه پوهاند استاد **رشاد**) ټولګی ته ورغی او هغه ته يې وويل چې زه ستا د ليدلو په هيله ستاسو ښوونځي او ستا ټولګي ته راغلی يم، استاد د نوموړي ښوونځي څخه تر فراغت وروسته د کندهار په مطبعه کې کار پيل کړ، او څه وخت وروسته بيا د کندهار په دريم نمبر ښوونځي کې ښوونکی سو او څنګه چې عمر يې ډېر کم و نو په کوچني معلم مشهور و .



اروابناد علامه رشاد بابا _ ۱۳۸۳ ل کال

ستر پوه پوهاند علامه اکاډميسن **عبدالشکور رشاد** ته د ژبو د زده کړو په برخه کې پاک خدای ﷻ ځانګړي مهارت ورکړی و، پښتو يې مورنۍ او دري يې هيوادنۍ ژبه وه چې په دواړو ژبو يې رواني ليکني کولې او شعرونه يې ويل .

پر اردو، عربي، روسي او انګليسي ژبو باندي مسلط و، د دې ژبو له آثارو څخه يې پخپلو څېړنو کې استفاده کوله او د اړتيا په وخت کې به يې ليکني په کولای سوای . سانسګريټ ژبه يې په ګرامري بنيادونو زده او څېړلې وه، د جاپاني ژبې سره آشنا و او د هيواد په ورو ژبو يې هم بلديت درلود .

د دغو ژبو زده کړو د استاد د معلوماتو او مطالعې ساحه پراخه کړې وه، او د څېړنو ماخذ يې ګڼ او ډېر کړي و .

اکاډميسن **پوهاند رشاد** د تاريخ، ادب، ژبپوهنې، لغتپوهنې، کتابپوهنې او کره کتنې په برخه کې پراخې،

ژوري او لـه نوښتـه ډکـي څېړني کـړي وې او ارزښتنـاک علمي آثار يې رامنځته کړي وو .

د **علامه استاد رشاد** علمي مطالعه ډېره وسيع او پراخه وه او تر حد زيات معلومات يې تر لاسه کړي وو، او خپلې حافظې ته به يې سپارل . د دوی همدې پراخو معلوماتو او پياوړي حافظې ده ته د ژوندي دايره المعارف بڼه ور کړې وه او هر چا چې به د ټولنيز ژوند په هره برخه کې معلومات کـاوه دوی تـه بـه يـې مراجعـه کولـه چـې دوی بـه ورتـه د موضـوع پـه اړونـد دقيقـې نېټې او د پيښـو ژوندی صحنې بيانولې .



ارواښاد علامه رشاد بابا (کندهار د تاريخ په اوږدو کښې) څېړنغونډې ته د خپلې ليکنې د لوستلو پر مهال ـ د غبرګولی ۲۸ مه ۱۳۸۳ ل کال

همـدا راز د دوی مشاهده هـم ډېـره پيـاوړې وه څـه چې به يې ليدل او څه چې به يې اورېدل حافظې ته به يې سپارل او خپـل معلومات به يې ترې غني کول . د ژونـد تـر پايـه د استاد کـور د علم او فيض مرجع و ، هر څوک بـه ور تلل او پوښتنې بـه يې کولې او ده به په پراخ تندي ځوابونه ور کول . که څـه هـم ډاکټر ورته توصيه کړې وه چې خبرې به ډېرې نه کوي ، خو دوی د علم په ښندنه کې بخل نسوای کولای او د ډاکټر د خبرو پر ته يې د هر چا خبرې اورېدلې او پـه دقيقو معلوماتو يې ځوابونه ور کول .

د **استاد رشاد** د علمي مقالو شمېر سوونو تـه رسيږي او ځانګړي آثار يې هم د سلو پـه شاوخوا کې دي چې د هغو د جملې څخه دو د برش ټوکـه چـاپ سوي او پنځـه شپېته ټوکه يې ناچاپه پاته دي .

د استاد د تاريخي ناچاپو آثارو په لړ کې لودي پښتانه يو له نوښتـه ډکـه څېړنـه ده چې پـه ۱۳۳۶ لمريز کـال کې چاپ سوه ، خو دوهم ټوک يې ناچاپه پاته دی .

سوري پښتانه د دوی د دې لړۍ بل اثر دی ، د کندهار دوه ټوکيزه تـاريخ ، د کنـدهار زيارتونـه يـې د ناچاپه آثـارو مهمـه برخـه ګڼل کيږي . د احمدشاهي عصر مشاهير د استاد د يـو بـل تـاريخي اثـر نوم دی چـې ۳۶۷۰ مخونـو تـه رسيږي ، د استاد ټول ناچاپه کتابونه د قدر وړ دي خو که د پورته کتابونو د چاپ لپاره زيات زيار او زحمت وګالل سي ډېر به ښه وي .

**استاد رشاد** د معـاني ، بيـان او پـاکي پـه اړونـد درې کتابونـه ليکلـي دي چـې ټولـو د مخونـو شـمېر ۱۵۰۰ کيږي .

همـدا رنګ د پښتانـه مصنفين ، پښتانه فارسي شـاعران ، پښتانـه اردو شـاعران او پښتانه شعراء د اسـتاد هغـه څلور تـذکرې دي چـې د مخونـو شـمېر يـې تـر ۲۰۰۰ زره اوړي . د پښتو شعر ، د طريقو شجرې او يو شمېر ژبنې او کره کتنو کتابونه يې په سوونو سوونو مخونو ته رسيږي .

استاد د ادب په اړوند ځانګړي آثار ليکلي چې له نوښت او ابتکار څخه ډک دي ، او د پښتو لپاره يې قاعدې او اصول جوړ کړي دي . په دې توګه د استاد ټول آثار د نوښته ډک دي ، د ځانګړ تياوو درلوونکي او ممتاز آثار دي ، چې چاپول يې د هيواد د علمي ، ادبي او فرهنګي مرکزونو کار دی او بايد د يوې ډېرې مهمې او درنـدې دندې په توګه يې تر سره کړي . ارواښاد **پوهاند علامه رشاد** د هيواد يوه لويه علمي او ادبي هستي وه چې د سږ کال د لېندۍ غشي زموږ څخه بېل او موږ يې د تل لپاره د دوی د علم او پوهې له فيض څخه بې برخې کړو .

ارواح دې ښاده او جنت دې ځای وي !

پوهنمل محمداسمعیل یون

# د استاد رشاد سیاسي شخصیت

کله چي موږ د پښتو ادبیاتو تاریخي بهیر او د پښتني ټولني د سیاسي سیر او تکامل بېلابېل پړاوونه ګورو نو د لیکوالی او سیاستوالی. لیکوال او سیاست تر منځ یو عجیب توازن او تناسب او یو پر بل باندي متقابل اغېز مو تر ستر ګو کیږي. امیر کروړ جهان پهلوان هم شاعر. لیکوال او سیاستوال و. پیر روښان هم لیکوال او سیاستوال و. نازو انا او زرغونه انا هم لیکوالي او سیاستوالي وې. خوشال او د هغه ټوله کورنی لیکوال او سیاستوال وو. د میرویس نیکه کورنی هم د لیکوالی او سیاستوالی دا اصل پاللی. بي بي زینب د یوې یخې شاعرۍ او سیاستوالۍ په توګه لا تر اوسه د تاریخ حافظه تانده ساتلې. احمدشاه بابا او د هغه کورنی هم د سیاستوالی تر څنګ د شاعرۍ درنه پانګه لري. خپله احمدشاه بابا د دیوان خاوند و.

لنډه دا چي دا لړۍ چي له امیر کروړه یا هم ان تر هغه دمخه پیل سوې د پښتو د معاصرو ادبیاتو په پیل سره بیا هم نه تمیږي. د سراج الاخبار جریدې اکثره خپاره سوي مطالب په هغو لیکوالو پوري اړه نیسي چي هم لیکوال وو هم سیاستوال. علامه محمود طرزی. عبدالهادي داوی. مولوی صالح محمد کندهاری او نور ټول لیکوال او سیاستوال وو. په اماني دوره کي عبدالرحمن لودین او نورو د سیاستوالی او لیکوالی دا دود وغځاوه او تر سقاوي اړودوړ وروسته پښتون بابا محمد ګل خان مومند د خوشال د دستار د سرې په شان د لیکوالی او سیاستوالی نري مزي لا پسي وپېیل او د سیاست په مټ یې پښتو ژبي او ادب ته داسي ستني ودرولې چي تر هغه وروسته پرې زموږ ملي ژبې او ادب ډیرې رنګیني ماڼۍ ودانې سوې. د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه په پیر کي بیا هم د لیکوالی او سیاستوالی مزي سره ونه شلېدل. د پښتو ادب پنځو ځلاندو ستورو د ویښو زلمیانو د ملي سیاسي غورځنګ په جوړونه او پر مخبېونه کي اغېزمن رول ولوباوه. او د ملي سیاسي افکارو په پنځونه او خورونه کي یې کارنده ونډه واخیسته.

**استاد عبدالشکور رشاد** هم د پښتو ادبیاتو د شېږم ستوري په توګه د ویښو زلمیانو په ملي سیاسي غورځنګ کي د فعالي ونډې له امله همدا دود وپاله او د ولسواکی په لسیزه کي د ملي ترقي دیموکرات ګوند د نشراتي ارګان (مساوات) جریدې د امتیاز خاوند په توګه د عملي سیاست او لیکوالی تر منځ اړیکي وساتل.

د پښتو معاصرو ادبیاتو د ټول پیر په ګډون، له امیر کروړه رانیولې بیا تر ۱۳۵۲ ـ ۱۳۵۷ کلونو پورې ټوله موده کې په عملي او نظري سیاست کې د لیکوال ګډون د ملي افکارو د خورولو، د ملي ویاړونو د انځورولو او ملت جوړولو سبب سوې او پر یوه مستقیم خط یې همدغه ملي ارمانونه پاللي او تعقیب کړي دي. یاني دا مهال سیاسي ملي وفاداري په اسانۍ سره د اختناق او امتیاز په وړاندې نظامونو د اختناق او امتیاز فشارونو هم اکثره مطرح لیکوال دې ته اړ ویستل چې د یوه او بل لوري په ګټه لیکنې وکړي او هم ځان په مستقیم ډول له عملي پلوه د هغوی په لیکه کې ودروي. خو **استاد عبدالشکور رشاد** د ویښو ځلمیانو له پاخه ملي سیاسي تحریک څخه هغه پخه ستنه وه چې دا مهال لا پر خپل ځای او خپل دریځ ولاړه وه. استاد نه یوازې د افغانستان، بلکې د سیمې په کچه داسې یوه درنه



له ښي لوري څلورم تن علامه رشاد بابا، په لیننګراد کښې د خپلواکۍ د جشن په ورځ
د غبرګولي ۶ مه، ۱۳۴۱ ل کال

خپل لوري نه بدلاوه. څکه نو که څه دا مهال سیاسي لیکوالي هم کړې اکثره یې په ولس کې د منښت او ګرانښت حیثیت لرې. تر ۱۳۵۷ ل کال وروسته چې په هیواد کې سیاسي بحران رامنځته سو، نو ورسره سم د سیاسي باور او وفادارۍ د ادلون او بدلون کړکېچ هم رامنځته سو. همدغه د سیاسي لیکوالۍ او سیاستوالو لیکوالو د اکثرو لیکونو لوري او تګلوري هم پر بدل سول. همدا مهال د ولس پر ذهن سیاسي لیکوالو او سیاسي لیکنو په وړاندې د بې باورۍ فضا خوره سوه، د وخت غوښتنې، د علمي او اکاډمیکه څېره وه چې هر نظام ته د تائید سر خوځونه او اشاره یې هغه نظام ته د مشروعیت د ښښنې مانا لرله، دا په داسې حال کې چې تر ۱۳۵۷ ل کال وروسته ټول نظامونه د مشروعیت له همداسې یو ستر چلنج سره مخامخ وو.

خو هیڅ نظام واکمن پر دې بریالی نه سو چې د زور او زر په مقابل کې د استاد له علمي او سیاسي وزن څخه خپل نظام د مشروعیت لپاره ګټه پورته کړي. هر نظام چې په کابل کې واکمن سوی نو یو ځل یې ضرور مغرور مشر تابه

د استاد د فقیر خانې ور ټکولې او په خپل نظام کې یې استاد ته د لوړ منصب د ورکړې بلنه ورکړې، خو هغه هیڅکله د امتیاز دا ډول خوړلینو ته د خپل احساس سر ټیټ نه کړ.
آن تر دې چې یو وخت استاد په علمي او اکاډمیکو ادارو کې د خپل پخواني ماموریت له دوام څخه هم ډډه وکړه او د کار دا ډول دوام یې هم د نظام مشروعیت ته د ګټې رسوني په مانا انګیرلې.

یوه غوره بېلګه یې هم په شپېتمو کلونو کې د وخت د حکومت له خوا د اکاډمیسین او کاندید اکاډمسین علمي

د تنظیمي واکمنې پر مهال یو ځل بیا واکمنو د استاد احساس او ملي وزن د ازمویني په تله کې واچاوه، د امتیاز او اختناق د دواړو میتودونو څخه یې کار واخیست خو استاد یې له خپل دریځه یو سانتي متر هم ونه خوځوه، همدا مهال چې کابل په وینو او اور کې لمبول کېده، د ملګرو ملتو او ځینو افغانانو له خوا به افغانستان ته د پخواني پاچا اعلیحضرت محمد ظاهرشاه د بیرته راتګ یو نیم غږ پورته کېده، اکثرو وسلوالو تنظیمونو په تېره بیا مغرورو بنسټپالو تنظیمونو به په یوه خوله د هغه د راتګ مخالفت کاوه، همدا



پوهاند علامه رشاد بابا په لیننګراد (سنت پیټرزبورګ) کښې ۱۳۴۲ ل کال

رتبو ورکړه وه چې استاد ته لومړی علومو اکاډمۍ د راتګ بلنه ورکړه خو هغه دا بلنه ونه منله، بیا یې د دې علمي رتبې لپاره د خپلو سوانحو د ورلېږلو بلنه ورکړه، خو استاد بیا هم خپلې سوانح ور ونه لېږلې نو د وخت حکومت مجبور سو چې د هغه سوانح د هغه د ماموریت له اسنادو څخه تر لاسه کړي او دا علمي رتبه کور ته ورولېږي. د وخت حکومت دا لوربینه د زړه له تله نه وه، د مجبوریت له مخې وه، ځکه چې دا مهال د ټول هیواد په کچه تر استاد رشاد لوړه علمي ستنه نه وه، نو که حکومت استاد ته دا علمي پوړۍ نه وای ورکړې نو تر هغه ټیټو کسانو ته د دا ډول علمي رتبو ورکول په اتومات ډول خپل مشروعیت له لاسه ورکاوه.

مهال استاد د همدې بنسټپالو تر ټولو سرټمبه مشر ته یو لیک ولېږه او په هغه کې یې لیکلي وچې له اعلیحضرت سره مخالفت نه ستا په ګټه دی او نه د ملت د اعلیحضرت په رد کې باید تاسو له ډېر تعقل څخه کار واخلئ، نه له احساساتي چلند څخه.

**استاد** په دې لیک کې د دې تنظیمي مشر د مخالفت له امله اوږدو احتمالي ملي او قبیلوي جنګونو ته هم په پرده کې اشاره کړې وه خو هغه وخت هغه تنظیمي مشر استاد په قبیلوي فکر او خولو کې ډوب وبوله او ویې ویل چې ما فکر نه کاوه چې **استاد رشاد** به هم قومیت پالي، لس کاله وروسته بیا دا سې وخت راغې چې همدا بنسټپالي د کابل

هوايي ډګر ته د اعليحضرت د هر کلي لپاره ورغلل او بيا وروسته يې د هغه لپاره مجللي مېلمستياوي وکړې خو استاد بيا په دې هر کلي او مېلمستياوو کې ګډون ونه کړ، تر تنظيمي اختناق او اوږدو وروسته د يوه بل اختناق لړۍ پيل سوه. د طالبانو نظام پر کابل او د هيواد پر زياتو سيمو واکمن سو. د هيواد د ملايي او تحصيل کړي قشر تر منځ يو غټ درز او تضاد رامنځته سو، هيڅ داسې ځرک او څراغ نه ليدل کېده چې له دې درز څخه هيواد ته د راپيدا کېدونکي

وخت لا نه و پسي ځرګند سو چې د اطلاعاتو او کلتور په وزارت کې يې د يو جوړ سوي سيمينار په ترڅ کې د يو اغزن طالب چارواکي له خوا د ويښ زلميانو په غورځنګ کې د ګډون له امله پر استاد د ګناه پېټې بار سو، خو استاد د همغه بحث په ترڅ کې په ډېر افتخار او جرئت سره ورته وويل :

**"هو ! زه ويښ زلمی وم، ويښ زلمی يم، او ويښ زلمی به يم."**



خطر د مخنيوي لپاره هڅې وکړي او د طالبانو د اغزن چاپېريال او چلند په مهارولو کې مرستندوی سي، او د هغه فشار د کمولو سبب سي چې دا مهال يې د هيواد د ټول روښنفکره او تحصيل کړي پاړکي د نابودۍ له ګواښ سره مخامخ کړی و. استاد په ډېر دقت سره د دې خطر مخنيوي ته راودانګل او د افغانستان په علوم اکاډمۍ کې يې د پخواني ماموريت د بيا راژوندي کولو له لارې وغوښتل د طالبانو او روښنفکره قشر تر منځ د يوه پل حيثيت غوره کړي. استاد د دې ملي خطر د کمولو لپاره ډېرې هلې ځلې وکړې خو کله چې يې وليدل باران پر کاڼو باندې اثر نه کوي او طالبان د خپل سپاره منطق له آسه نه کوزېږي نو خپله لاره يې بېله کړه. طالبانو ته د استاد ملي دريځ هغه

دې خبرې سره د سيمينار طالب او ناطالب برخوال هک حيران سوي او استاد له سيميناره د کور پر لوري رهي سو. اوس چې د طالبانو د وهم او اختناق شمار وژل سوی، کېدای سي ځينو خلکو ته دا يو معمولي خبره ښکاره سي، خو هغه چا چې د طالبانو په اغزنه واکمنۍ کې شپې ورځې تيرې کړې، هغوی ته د استاد دا حرکت د سياسي او اخلاقي جرئت يو شهکاره بېلګه ده.

کله چې د طالبانو مشر په هيواد کې د يو ستر فرهنګي جرم د سر ته رسوني ( د باميانو د تاريخي بتانو د ماتولو) فيصله وکړ، نو استاد په همهغو شپو ورځو کې د طالبانو مشر ملا محمد عمر مجاهد ته يو ليک ولېږه. په ليک کې په واضح ډول او په ټينګه غوښتنه سوې وه چې د دې تاريخي

اثار و رنګونه افغانستان ته یوه نه جبرانېدونکې زیان دی او خپله طالبانو ته یې هم عواقب ښه نه دي . یو زورور واکمن ته د قدرت د اوج پر مهال د داډول څرګند لیک لېږل یوازې د **استاد رشاد** غوندي د پخې ارادې خاوندان کولای سي او بس !

کله چې طالبان د قدرت له نیلي راوغورځول سول او یو ځل بیا زړو ؟؟؟ ځای ونیو، نو یو ځل بیا د **استاد رشاد** فقیر خانې ته د کورنیو او بهرنیو واکمنو بهیر ورمات سو، د لنډمهال اداري له مشر نه نیولې بیا تر دویم او دریم لاس چارواکو له استاد څخه په دولت کې د ګډون هیله وکړه خو **استاد** بیا هم د قناعت پر تخت ناست و، څوک یې او

دا د استاد د علمي سیاسي شخصیت څو ښېګڼې وې چې په لنډیز سره ورته اشاره وسوه. په نظري سیاست کې د هغه په ښلابښلو لیکنو خصوصاً په شعرونو کې د هغه د شخصیت انځور په ډېر ښه ډول لیدلای سو. که په عملي او نظري سیاست کې د **استاد** د برخې اخیستنې ټولې ښېګڼې موږ په دقت سره له نظره تېرې کړو نو په څرګند ډول به راته جوته سي چې **استاد** د خپلې لیکوالۍ یا فکري بلوغ له پیله بیا تر ابدي سفر پورې یو مستقیم ملي خط تعقیب کړی او هیڅکله هم اختناق او امتیاز پر دې نه دی بریالی سوی چې دی له خپل ملي، هوډ، دریځ او لارې واړوي .

د سیاسي شخصیتونو په ارزونه کې د زمان او مکان



مقامونه ورته د باد ښکې ښکار بدل، همدا مهال د ملګرو ملتونو ځانګړي استازي لخدر ابراهیمي هم د **استاد** کور ته په حکومت او روان سیاسي پروسه کې د هغه د ګډون لپاره هغه ته ځانګړې مراجعه وکړه، نو **استاد** نه یوازې دا چې د لخدر ابراهیمي بلنه ونه منله، بلکې افغانستان ته د امریکایي ځواکونو د راتګ د مشروعیت په اړه یې هم ګڼې داسې غوښتنې مطرح کړې چې کېدای سي مېلمه سره یې ځواب نه و .

حالات د اختناق او امتیاز د فشار وده غټ فکتورونه ډېر مهم دي، هر سیاسي یا فرهنګي شخص چې د وخت له حالاتو سره پر وخت مبارزه کړې د اختناق او امتیاز د فشار له دواړو حالاتو څخه بریمن راووځي نو دا ډول شخصیتونه مثبت ګڼل کیږي او د عامه منښت او ګرانښت جوګه ګرځي او ان د روحانیت مرتبې ته رسیږي. زما په نظر **استاد رشاد** له سیاسي پلوه همداسې یو شخصیت و .

غلام مصطفى "هيله من"

# په څېړنه کې د فاضل استاد رشاد ځانګړې لار

اروابناد لوی استاد اکاډمیسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد زموږ د هیواد د اوسنیو لیکوالو، ادیبانو او شاعرانو په کتار کې د پوره شهرت خاوند، پېژندل سوی د ختیځ ستر پوهاند او لوی څېړونکی بلل کیږي .

نوموړي د خپل ژوند زیاته برخه د ژوندانه تر پایه پوري په لیکنه، شعر او شاعري، ادبپوهنه، تاریخي څېړنو، د ژبې د ادبي تاریخ او ژبنیو موضوعګانو په اړوند ډېري زیاتي څېړني او څرګندوني کړي دي. چي زموږ د دې خبري استناد د مرحوم **لوی استاد رشاد صاحب** هغه آثار دي چي څه یې د چاپ ډګر ته راوتلي او ډېر یې لا همهغسي خطي نسخې دي چي په مختلفو موضوعګانو کي یې تر سره کړي دي .

د مرحوم استاد څېړنه ډېره ژوره او په علمي، منطقي دلایلو او داسي بېلګو بنا وه چي د هر لوستونکي لپاره په پوره توګه د قناعت او منلو وړ ګرځېده . استاد د مسایلو په څرګندولو کي د کلماتو او الفاظو په ډېر خوندور بیان او د ژبې د فصاحت . بلاغت او معانیو په اداینه کي د پوره او بډای استعداد او ذکاوت څخه برخمن و . هره مسئله او موضوع یې له پیل نه بیا تر پایه پوري قدم په قدم بې له دې څخه چي د موضوع څخه ووزي د اړونده مسئلې په اړه به یې په چاپېریال او ټولنه کي د ژوندیو مثالونو او بېلګو په ترځ کي څېړله .

د مثال په توګه د ادبي فنونو په برخه کي چي یې کومي مقالې او ویناوي خپرې کړي دي نو په لومړي سر کي یې ادب، د ادب معنی، د ادب تاریخچه او ادب تر منځ په اړیکو او بیا په ژبه کي د ادب اړتیا او په ادب کي د لفظي او معنوي فنونو او بیا تر پایه پوري د هري موضوع په باره کي د نوموړي موضوع لنډیز او په پای کي به یې یوه ښکاره نتیجه او پایله درلوده چي پایله به د ایجاز په توګه د لوستونکو لپاره په ډېرو کمو او لږو الفاظو کي د لوی مطلب د بیان اظهار او څرګندونه وه . چي فاضل استاد په دغه لاره کي رښتیا ډېر بریالی و .



اروابناد علامه رشاد بابا د عبدالسلام اشیزي په څېرنغونده کي د وینا پر مهال ۱۳۸۳ ل کال

همدارنګه د ټولني د لویو مشاهیرو په هکله به یې د هغوی مکمله شجره او خانداني یا کورني مناسبات د هغه

چاپېريال او نومورو مشاهيرو او لويو اشخاصو د اوسېدنې او زده کړې او ښووني او بيا د دغو نومورو د کارنامو او وياړنو او نور هغه څه په پوره توګه به يې د لوستونکو سره د هغو د پېژندلو په برخه کې مرسته کوله، دا ټول ملحوظات يې په پام کې وه .

همدارنګه د جغرافيايي ځايونو، ښارونو او نورو تاريخي ځايونو په اړوند يې څېړنه ډېره ژوره وه . د دغو تاريخي او جغرافيايي سيمو په هکله به يې د هغو ځايو سره د نومونو د ايښودلو وجه او د دغو نومونو لومړني لفظي ډولونه او بيا په هغو کې د بدلون د راتلو علتونه او دلايل او بيا ورسره د هغو ځايونو پوره معرفي او پېژندنه شامله وه .

د هغه ځای د اوسېدونکو د فرهنګ يا کلتوري شتمنيو او د خلکو د ژبې په لهجه او نورو اړونده موضوعګانو به يې پوره رڼا اچوله . د تاريخي څېړنو په برخه کې يې په معتبرو تاريخي اسنادو او شواهدو باندي تکيه کوله او د هري تاريخي پيښې عوامل او علتونه به يې د هغه وخت د هر اړخيزو شرايطو او مناسباتو پر بنسټ څېړل او د تاريخي نوميالو د ژوندانه په هکله يې هر اړخيزي ځرګندوني کولې .



ارواښاد علامه رشاد بابا د علم او ادب مينه والو ته د وينا پر مهال (په کندهار کې د آيينې سيمه ايز دفتر) ۱۳۸۳ ل کال

که چيري د فاضل استاد آثار په غور سره وګورو هغه ليکني چې هم ملي ارزښتونه پکښې خوندي دي او د هيواد د تاريخي وياړنو څېره يې په واقعي توګه خلکو ته انځور کړېده او په بين المللي ډګر کې يې د نړۍ په مختلفو مسائلو او موضوعګانو باندي د څېړني په توګه ښه رڼا اچولې ده . د خارجي محققينو او د پښتو او نورو ختيځو ژبو د پوهانو په کتابونو کې يې د مثال په ډول د ګولډشتيېړ د کتاب يا ګلشن روه سريزه په داسې توګه معرفي کوي چې د نومورو کتابونو د ليکوالو په هکله بشپړ معلومات او د دوی د ژوندانه ټول اړخونه ځرګندوي . بيا يې د کتاب د ليکلو دليلونه، عوامل او د دغه کتاب ژبنيز او ادبي ارزښتونه په ښه توګه تر پراخې څېړني لاندي نيولي دي .

همدارنګه د پښتو ادب د نوميالو شاعرانو د ديوانونو زياته برخه، سريزي او د کلماتو څېړنه او د لغاتونو سپړنه يې په پوره درايت او ښکاره مثالونو سره تره سره کړېده .

**فاضل استاد رشاد صاحب** په خپلو ليکنو کې د کلماتو او الفاظو په ټاکنه کې پوره تعادل ساتلی، د بيان ژبه يې خورا فصيحه او خوږه وه . او د بلاغت اصل يې د لوړتيا تر آخرنۍ درجې پوري رسېدلی . د پوره منطقيت اصل يې پر ليکنه مسلط او دلايل يې په پوره شواهدو او اسنادو او په باوري ماخذونو باندي بناء وه .

دماخذونو په معرفي کې يې تر زياتي اندازي پوري چې د نومورې ماخذ پر پېژندنه، چاپ ځای، چاپکال او داسي نورو باندي چې ماخذ ښه ترا ځرګند سي او هر لوستونکي ته د پوره ډاډ وړ وګرځي هڅه کړېده .

په ليکنه کې يې د پښتو ژبې د سوچه او لرغونو کلماتو د راوړلو پوره خيال ساتلی دی او بيا به يې د دغو کلماتو او الفاظو لپاره په لمن ليک او يا د اثر په پای کې د هغوی شرحه او تفصيل راووړ .

**ښاغلي استاد** د خپلي ټولني او هيواد لپاره داسي يوه نه هېرېدونکې ځېره ده چي افغاني ټولنه يې په علميت، پوهه او ځير کتيا هر وخت وياړي او د ده آثار د ټولني لپاره هغه معنوي او فرهنگي شتمني ده چي هر اثر يې د ټولني لپاره د پوهي او ادب زرينه پانگه او شتمني بلل کيږي . چي دا به تل زموږ د ټولني او هيواد لپاره نه هېرېدونکې تلپاته شتمني



وي . او نور اديبان، شاعران، ليکوال او د هيواد د تاريخ او فرهنگ، ژبي او ادب مينه وال به يې د ستر گو د کسي په شان په ساتنه، ستاينه او پالنه خپل ځانونه مکلف بولي، او د خپلو آثارو د ليکني په لاره کي به يې د لاري مشال او د سرمشق په توگه لا نور هم وپالي او پرې وبه وياړي .

نو نن چي زموږ دغه فاضل استاد له دې نړۍ څخه د تل لپاره ستر گي پټي کړي د پښتو ژبي ادب او د هيواد د تاريخي او فرهنگي بډايني لپاره د **لوی استاد رشاد صاحب** مړينه ډېره لويه تشه بلل کيږي، چي د دې تشي ډکول به تر ډېره همداسي پاته وي .

موږ د فاضل استاد روح ته د لوی خدای ﷻ د لوړ درباره څخه د مغفرت او بخښني هيله کوو او روحي يې ښاد غواړو . او د ادب او تاريخ ليکوالانو او اديبانو ، شاعرانو او ژبنيزو څېړونکو او د اطلاعات او کلتور د چارواکو لپاره په

اوس مهال کي دا خبره زياته د پام وړ بريښي چي د فاضل **استاد رشاد صاحب** د آثارو د ساتني او پالني او په ټولنه کي د دغو آثارو د خپر ېدلو او چاپولو په برخه کي پوره ونډه واخلي او د مرحوم استاد هغه آثار چي لا نه دي چاپ سوي ژر تر ژره چاپ کړي تر څو د ټولني د فرهنگپالو اديبانو او ژبي د څېړونکو او لوستونکو ادبي تنده پرې ماته سي .

همدارنگه د **ښاغلي استاد** د ژوند او آثارو په هکله د هيوادوالو او نړيوالو په مرسته وخت په وخت علمي او څېړنيز سيمينارونه جوړ کړي، تر څو زموږ د عصر دغه تاريخي پېژندل سوې څېره په نړيواله سطحه د لوی ستر ختيځپوه په توگه يې يادونه او لمانځنه وسي .

او زموږ د هيواد دغسي نوري څېرې چي زموږ د ټولني د تاريخ، ادب، ژبي او نورو علمي او فرهنگي پرمختگونو په هکله يې ښېساري خدمتونه تر سره کړي دي د پوره درنښت وړ وگرځي او يادونه يې د هيواد د فرهنگ، کلتور او ادبي تاريخ د پوره غوراوي لپاره اړينه ده . تر څو د دغسي لوړو شخصيتونو د نمانځني په لړ کي خپله دنده په ښه توگه تر سره سي .

محمدنبي صلاحي/پکتیا

# د
# اکاډمیسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد
# او
# علامه سید جمال الدین

## ورته والی او مماثلت

د گران افغانستان زرخېزه خاوره نه یوازي له قیمتي کانونو ډکه ده . بلکي دغي خاوري په بېلابیلو وختو کي یو شمېر داسي قیمتي انسانان هم زېږولي دي چي د دې هیواد او د افغانستان د ملت استازي او نماینده شخصیتونه یې بللي سو .

د هغو له جملې څخه یو هم **علامه استاد عبدالشکور رشاد بابا** دی . کـه سړی د ده د ارزښتناکو علمي او ادبي آثارو . ژور . دقیق او نفیس طرز ته پام وکړي . نو دې نتیجې تـه رسیږي ی هغـه پـه خپلـو خپرنو کـي لـه یـوه ډېر سکلي او زبردست علمي احتیاط نـه کار اخیستی دی . او د افغاني فرهنگ یو برجسته او نمونـه یې شخصیت یې بللی سو . د ده لیکني لکـه د یـوه ملـک ملـي سرود داسي دي . چي د هغه هیواد په کورنیو او داخلي کشمکشونو کي یې بدلېدل جواز نه لري .

تاسي یوهېـږي چـې د یـوه لیکـوال ژونـد لـه مختلفـو پړاوونو څخه تیریږي . کـه سړی پـه غـور وگوري نـو د یو شمېر لیکوالو په دریځونو کي وخت پر وخت بنسټیز بـدلون احساسولای سو . مگر **علامه استاد رشاد** له کومه وخته چي د وېښو خلمیانو د ملي غورځنگ غړیتوب تر لاسه کړ . د خپل ژوندانـه پـه بېلابیلو پړاوونو اوآن د ژوندانـه تـر پایـه پـوري خپـل مسیر او پروگـرام بـدل نکـړ . او پـه هماغـه تگـلاره او کرښه باندي ټېنگ پاتـه سو . د زړه لـه کومي یې هماغـه ملي ارزښتونه وپالل او د هماغه سالم افغاني پیغام پـه سـه روزنـه او پالنـه بوخت و . پـه دې سبب مـوږ د ده پـه لیکنـو او څېړنو کـي پـه منظمـه او سیستماتیکه توگـه د یـوې سـالمي افغـاني روحـیې او د ملـي ارزښتونـو د پـالني ننـداره کـولای سو . رحمان بابا څه ښه ویلي دي :

لکه ونه مستقیم پر خپل مکان یم
که خزان راباندي راسي که بهار

د ده د آثـارو ښېگنـه دا ده چـي لـه اجتمـاعي . سیاسـي . اقتصادي او ملي ماهیت له پلوه ډېري اعلی او پـه هـره برخـه کي یې ډېر ښکلي ملي مفهوم پټ دی . د ده لیکني او آثار یوه ډېره سالمه افغاني جذبه لـري . ډېر ښکلي او اصیل ارزښتونـه پکښـي نغښـتل سوي دي . د شکل او مضـمون لـه پلـوه ډېـر روان او سـلیس دي . پـه لنـډو کلمـاتو کـي ډیري غټې او ستري معنـاوي افاده کـوي . یو ټکی لـه بـل ټکي . یوه جمله له بلي جملې . یو پراگراف لـه بـل پراگـراف . یوه کړی ل بلي کړی او یوه خبره له بلي خبـري سـره داسـي هماهنگي لري . بس ته بـه وایـي چـي لیکـوال د الفاظو سـرود ږغوي .

هو ! کله چې د استاد ژوندیو علمي کارنامو، د زورورو د استعمار چیانو پر خلاف پرله پسې مبارزې او له علم او پوهې نه ډک استعداد ته وگورم، نو سملاسي مې د علامه سید جمال الدین افغان څېره تر سترگو سي او د هغه مهړنی علمي او تاریخي کارنامې راپه زړه سي . دغه دواړه علمي او علامه شخصیتونه په ځینو برخو کې ډېر ورته والی او مماثلت لري .

هو ! که علامه سید جمال الدین افغان په درې روڅو کې یوه بهرنی ژبه دومره زده کولای سوای چې خپل لومړنی ستونزې پرې حل کړي، نو **علامه استاد رشاد** هم د دې توان درلود چې د دریو روڅو په ترڅ کې په یوه خارجي ژبه باندې خبري وکړي او د یوې میاشتې په ترڅ کې یوه خارجي ژبه لکه جاپاني او یا نوري زده کړي . هغه هم په اویا کلنی کې ، دا ټکي نه یوازې د افغانستان په سطحه ، بلکې د سیمې ، د اسیا د براعظم ، آن ټول شرق او نړۍ په سطحه یوه د ډېر زیات تعجب وړ خبره او یو نادر ټکی دی :

چه خوش گفت پیامبر راستگوی

زگهواره تا گور دانش بجوی

شه مې په یاد دي، **علامه استاد رشاد** په ۱۳۶۱ ش کال کې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځی په پښتو څانگه کې د وزن پوهني په نامه د یوه مضمون سبق راکاوه . کله چې استاد ټولگی ته راننووت د پښتو څانگي یو څو تنه نور استادان به هم له شا پسې راننوتل او له موږ مخکې به پر چوکیو کښېناستل او د استاد درس او لکچر ته به یې غوږ نیولی و .

رښتيا استاد د پښتو څانگي دویم او څلورم ټولگی ته په یوه وخت کې د وزن پوهني تدریس کېده او د دغه سبق په وخت کې به دواړه صنفه سره یو ځای کېدل .

کله چې استاد د دغه مضمون په اوله روځ زموږ ټولگی ته راننووت نو په یوه ور ښمینه خندا کې یې وویل چې زه نن خپله حافظه معلوموم . له موږ ټولو څخه یې د خپلو نومونو پوښتنه وکړه . موږ ټولو یوازې یو ځل خپل نومونه وروښودل له هغه وروسته استاد په درس پیل وکړ . د دغې روځې درس پای ته ورسېد ، یو دوه روځې وروسته زموږ د وزن پوهني د مضمون وخت بیا راورسېد ، استاد بیا زموږ ټولگی ته راننووت . په دغه روځ زموږ د صنف زیاترو کسانو خپل پخواني ځایونه بدل کړي وو او په نورو چوکیو ناست وو . استاد موږ ټولو ته چې شمېر مو نږدې پنځه او یا کسو ته رسېده ، خپل خپل نومونه راوښودل او له هغه وروسته یې په تدریس پیل وکړ . یو وار دا وړ پېښه پخوا هم اور بدل سوې وه . دا دویم ځل و .



فاضل استاد علامه رشاد د اروابناد لوی استاد علامه حبیبي درنې اروا ته د دعا کولو پر مهال ـ د زمري ۱۱ مه ۱۳۸۰ ل کال

د **استاد رشاد** په څېړنو او پلټنو کې په څه د پاسه پنځه ویشتو ژبو کې د یوه لغت معنا ، تشریح او څېړنه بیخي یو معمول گرځېدلی و . کوم کار چې په افغانستان او سیمه کې بل چا نه دی کړی ، هغه پر ماخذونو کره کتنه ده .

**علامه استاد رشاد** نه یوازې د خپل دریځ او فضلي استعداد له پلوه د خپل ژوندانه تر پایه پوري لکه علامه سید جمال الدین افغان په خپل پیاوړي او مضبوط موقف باندې استوار پاته سو ، بلکې له مرگ څخه وروسته هم له هغه سره مماثلت لري . دغه پاک نفسه او زړور عالم لکه علامه سید جمال الدین افغان په هر ډگر کې د افغانستان د

خاوري او د دې هيواد د بچيانو د ملي ارمانونو، ملي ارزښتونو او روا غوښتنو د بيانولو په برخه کې غلی نه سو او په هر ميدان کې يې د خپل نظر له بيان څخه ونه ډار سو .

له علامه سيد جمال الدين افغان سره د **علامه استاد رشاد** مماثلت په دې کې هم دی چې علامه سيد جمال الدين افغان په کابل پوهنتون کې او علامه استاد رشاد د کندهار په پوهنتون کې ښخ او دفن سو .

هو ! له علامه سيد جمال الدين افغان سره د **علامه استاد رشاد** يو غټ توپير په دې کې دی چې سيد د خپل علم د فضيلت په سبب د خپل ابايي ملک پرېښودلو ته اړ سو، مګر د **استاد رشاد** ژوند تر پايه پوري په خپل پلرني هيواد کې د شاګردانو او کتابونو په منځ کې تېر سو .

علامه سيد جمال الدين افغان کله چې له افغانستان نه هند نه په جبري توګه مجبور سو، د افغانستان د ودانولو لپاره يې د خپلو سوچونو او پروګرامونو يو لست د وخت واکمن امير شېرعليخان ته وسپاره، چې زه خو درنه ولاړم، دا کارونه ته وکړه، مګر د **استاد رشاد** د قسمت فيصله بل ډول وه، **علامه استاد رشاد** غوښتل چې اصلاح له کښته (له اولسه) او علامه سيد جمال الدين افغان غوښتل چې اصلاح له لوړه راسي .

هو ! کله چې **استاد رشاد** اويا (۷۰) کلن سو، نو د خوشحال ناحکومتي فرهنګي ټولني په يوه ډېر ښه ابتکار او نوښت لاس پوري کړ . هغه د **استاد رشاد** د اوياکلنۍ د کليزې د پروګرام نيول و . دا شانداره غونډه د کابل پوهنتون د علمي شورا په تالار کې جوړه سوې وه . يوه ډېره خوندوره روغ وه . د هغې روغې خوند اوس هم زما په خوله کې دی او هيڅ مي له ياده نه وځي .

**علامه استاد رشاد** پدغه روغ د وينا کوونکو د خبرو په پای کې د سټيج پر سر د ګويا خوا ته راغی او لور له لوره د چکچکو درزی و . ټول حيران وو چې **استاد رشاد** به د خپلې اويايمې کليزې او بيا د ځان په باب څه وايي؟ تاسي پوهېږئ چې د يوه ليکوال په ژوندانه کې تر ټولو سخت کار د ځان په باب څه ويل او ليکل دي .


فاضل استاد علامه رشاد بابا د اروابناد محمدابراهيم خواخوږي د قبر د ډبرليک څخه کتنه کوي
۵ شنبه د زمري ۱۱ مه ۱۳۸۰ ل کال

تاسي به ډېر داسي ليکوال او شاعران ليدلي وي چې د ډېرو نورو ليکوالو او سوانح او بيوګرافي يې په خپل لاس ليکلې وي، مګر خپلې ځني پاته وي . تاسي **استاد رشاد** ته وګورئ چې ده په دغه روغ څه وويل؟ دا ډېره مهمه خبره ده . په دغه روغ ټولو وينا کوونکو د ده د عظيمو ادبي او علمي کارونو په سبب استاد ته د عقيدت ګلونه وړاندي کړل . نورو ګډون کوونکو د ده په مخکي د ګلانو ګېډۍ کښېښودې او د استاد لاسونه يې ښکلول . د استاد نېکخويونه يې بيانول او د ده ښکلي ظرافتونه يې ستايل . په مقابل کې **استاد رشاد** افغاني فرهنګيانو ته د يوې زيانمنې عنعنې د ماتېدو مبارکي وويله . لومړی يې د ناروېژي ختيځ پوه مار ګنسټرن يو دوه نقل قولونه بيان کړل، ده وويل :

" یو نارویژی پوه چي د افغانستان په باب څېړني لري، هغه په دې نظر دی چي :

افغانان په ژوندو کي ښه سړي او په مړو کي بد سړي نه لري !

دغه نارویژی عالم په یوه بل ځای کي لیکي

افغانان یو داسي قوم دی، چي ژوندي په ګور منډي او مړي له قبره راباسي .

نو زه نن تاسي ته د افغانانو د دغي زیانمني عنعنې د ماتېدو په سبب مبارکي وایم" .

هو ! استاد ته د خپلو بې ساري ادبي او علمي خدمتونو په سبب د اکاډمیسین علمي رتبه ورکړل سوه . په ژوند د علامه په لقب وویاړل سو . د **رشاد** په نامه یوه وزمینه علمي او ادبي مجله خپره سوه او د **رشاد** د ادبي کره کتني په نامه ټولنه جوړه او په زړه پوري غونډي وسوې . په دې معنا چي **علامه استاد رشاد** په ژوند د افغانانو په منځ کي مطرح سو، مګر د علامه سید جمال الدین افغان نصیب له مړيني وروسته په افغانستان کي وسو . د هغه په یاد ملي او بین المللي غونډي او نړیوال سیمینارونه جوړ سول . ډېرو په هغه پسي د افسوس لاسونه وموړل او د علامه سید د اثارو او افکارو له مرګ وروسته بېساري قدرداني او درناوی وسو .

د **علامه استاد رشاد** د اثارو او لیکنو بله ،میزه د مولف روحاني مقام او مرتبه ده . **استاد رشاد** په دغه برخه کي هم د اسلامي ارزښتونو پیرو او د علامه سید جمال الدین افغان په څېر د اسلامي او ملي ارزښتونو پالونکی دی .

**استاد رشاد** چي څه لیکل، د لوی خدای ﷻ رضا، د انساني فرهنګ بډاینه، د اسلامي علومو پراختیا او د افغاني فرهنګ سمسورتیا یې مطلب وه .

هو ! ما کله چي د خپل قدرمن پلار او استاد الحاج محمد الله خان په ناچاپه وصیت نامه باندي د **استاد رشاد** نظر وغوښت، هغه د خپل دغه نظر په یوه برخه کي دغه خبره راته وکړه :

" صدقه او شکرانه ایستل په هر څه کي سته، د پروردګار عالم ﷻ د رضا لپاره بې پیسو یو چاته یو څه ورښوول، په حقیقت کي د خپل علم صدقه ایستل او شکرانه ورکول دي !"



ارواښاد اکاډمیسین علامه رشاد بابا د جنوبي پښتونخوا د لیکوالو او پوهانو سره

نو ځکه ویلی سو چي استاد خپلي ډېري قیمتي او ارزښتناکي لیکني د ثوابونو او اجرونو د ګټلو او د خپل ولس د پوهولو په منظور باندي کښلي دي .

د **علامه استاد رشاد** په باب زما خاطرې نه هېرېدونکي دي . د شپېتمو کلونو په پای کي د افغانستان په مرکز کابل کي د ستر احمدشاه بابا په باره کي په اریانا هوټل کي یو علمي او ادبي سیمینار جوړ سوی و .

ما په دغه سیمینار کي د احمدشاه بابا د نظامي تکتیکونو په باب خپله مقاله لرله . **استاد رشاد** په دغه سیمینار کي یوه ډېره نادره مقاله لیکلې وه، د ده دا مقاله

افغانستان ته د تزاري روسيې د هغو جاسوسانو د راليږلو په برخه کې وه کوموچې غوښتل احمدشاه بابا په دې قانع کړي چې له چين سره وجنګيږي .

دا جاسوسان له مسکو نه تاجکستان، له هغه ځايه بدخشان، بيا د افغانستان د شمالي لوري نورو سيمو او ان کندهار او په کندهار کې د احمدشاه بابا دربار ته ننوتي وو، دوی د خپلې وظيفې د سر ته رسولو لپاره ډېر کوښښونه کړي وه، مګر احمدشاه بابا په دې نظر ټينګ ولاړ و چې له چين سره زما د جنګ کولو ضرورت او جواز څه شي دی؟ دغو جاسوسانو او دغو جاسوسانو ته وظيفه سپارونکو غوښتل چې په دغه وړ د ستر احمدشاه بابا يو لک پوځي ځواک ختم کړي. تر څو په دغه وړ افغانستان ته د روسانو د لاسوهنې لپاره زمينه برابره او لاره اواره سي .

د **استاد رشاد** دا مقاله تحريري وه، مګر په سيمينار کې استاد زياتي اوله ياده وغږېده. دغو جاسوسانو کله چې له روس نه دافغانستان پر لور حرکت راکړی و بيا په تاجکستان، بدخشان، د شمال لوري په نورو سيمو او ان کندهار کې د تاريخي اسنادو په حواله داسې تعقيب او څېړلې وه چې د نه منلو وړ خبره وه . ان دا استاد د هغې روحي شفاهي وينا د هغو پوهانو او د سيمينار د هغو ګډون کوونکو عالمانو لپاره هم يوه حيرانوونکې خبره وه چې تر پنځوسو د زياتو علمي او تحقيقي آثارو خاوندان وو .

په پای کې دا وړانديز هم کوم چې سر له اوسه دې د **رشاد** د پېژندنې په نامه د يوه نړيوال سيمينار لپاره تيارۍ ونيول سي .

څومره به ښه وي که د دغه سيمينار له جوړېدو مخکې د شعر او ادب، لغت پوهنې، تاريخ او جغرافيې، د افغانانو د فرهنګ او د پښتو ژبې د شعرونو د وزن پوهنې په برخه کې د **علامه استاد رشاد** يو څو کتابونه په ښکلي قطع او صحافت چاپ سي . دا به د ده له مبارک وفات نه وروسته د ده د ناچاپي آثارو د چاپ په برخه کې لومړي ګامونه وي او په دې وړ بايد د ده د ټولو آثارو د چاپ او نشر زمينې ولټول سي .

ورسره دا وړانديز هم کوم چې د پوهې او ادب د دغه کان او دايره المعارف مغزه ککرې **علامه استاد رشاد** علمي او ادبي کارنامې افغانستان شموله وي، بايد په کابل کې د **استاد رشاد** علمي څلی او مرکز معلوم وي . زه دا ډېره غوره او تر ښو ښه بولم، که چيرې په کابل کې د ښوونې او روزنې پوهنتون چې کله د اجتماعي علومو د انستيتيوټ، کله په يوه او کله په بل نوم يادېده او بيا د پير روښان د دارالمعلمين او د پيداګوژۍ د انستيتيوټ له اغزل کېدو او يو ځای کېدو وروسته د ښوونې او روزنې پوهنتون په نامه ونومول سو، د **رشاد پوهنتون** په نامه ونومول سي .



د شهيدانو او سردارمددخان د څلور لارو تر منځ لاره باندي چي د لوی استاد علامه حبيبي په نوم نومول سوې اړونده دړه (لوحه) دروي ۱۳۸۳ ل کال

يو خوا دا پوهنتون تر اوسه پورې ډېر له ستر ګو لوېدلی دی . يو به دغه پوهنتون د **رشاد پوهنتون** په نامه په مسمی کېدو سره د کابل پوهنتون په څېر اعتبار او ځلا وموسي او بل به د **علامه استاد رشاد** حق څرنګه چې لازم دی، دغه وړ ادا سي، د دغو وړانديزونو د عملي کېدو په هيله .

# د حضرت علامه رشاد اثار

عبدالمالک همت

د قرانکریم آیت دی :-

« کل نفس ذائقه الموت » { آل عمرآن :- ۱۸۵ }

ژباړه :- په پای کې هر څوک د مړینې خوند څکونکی دی .

بل آیت دی :-

« کل شئ هالک الاوجهه » { القصص :- ۸۸ }

ژباړه :-

له لوی څښتنه پرته بل هر شی هلاکېدونکی دی .

رشتیا هم په همدې ډول له موږ څخه پرله پسې یو یو د مرگ خوند څکي . له دې نړۍ څخه بلې ته درومي او موږ په خواشیني پسې وایو :-

خدایه څه سول هغه ښکلي ښکلي خلک ؟

په ظاهر په باطن سپین سپېڅلي خلک

په همدې لړ کې مې واورېدل چې زموږ د هیواد او ولس درond پوهاند او د پوهې او ادب د کړیو ستر ویاړ **حضرت علامه رشاد صاحب** د ۱۳۸۳ ل کال د لېندی پر (۱۱) مه د چارشنبې په ورځ د غرمې د دوولس نیمو بجو په شاوخوا کې په کابل کې له دې فانې نړۍ څخه د تل لپاره سترگې پټې کړې .

انا لله و انا الیه راجعون

دا د طبیعت قانون دی چې د دې خاورینې کرې پر مخ هر څه له مړینې لپاره زېږي . له دې امله **دی** چې وایي یوه ملائکه هر سهار نارې وهي چې :-

"لدوا للموت و بونو اللخراب " (د مړینې لپاره زېږئ او د ورانی لپاره ودانی کوئ) . یو مهال به زما دغه لیک څوک لولي او زه به هم دلته نه یم .

ښه رابه سو د **حضرت رشاد** یاد ته .

کله کله چې به مې د کابل اراده سوه، له دې ځایه به لا په دې خوښ وم چې ښه دی هلته به د **رشاد صاحب** کره ورسم او د پوهې او فضل له درمنده به یې څو وږې ټول کړم . خو کله چې به د هغه د لیدو کتو او د هغه د علم او تبحر څخه د گټې اخیستلو موقع په لاس راغله، بیا به دا خرخښه وه چې د سړي روغتیایي حالت د ډېرو خبرو نه دی . خو له ښه مرغه به د خبرو اترو پر مهال جوته سوه چې د علمي او ادبي بحث لپاره به ډېر چمتو و، او پیاوړي حافظې به یې ډاډ ورکاوه چې هري پوښتنې ته ښه څه تکلیفه ځواب ویلای سي . په دغسې حالت کې مې په یاد یږي چې ما به ورته ویل : **رشاد صاحب** شکر دی دناروغې نخښې نه درباندې ښکاري او صحت دې ښه دی . هغه به د تل په څېر ومسل او وبه یې ویل :-

"هو ! ناجوړې مې ښه ده" .

او په یاد یږي مې چې یو وخت یې ویل :-

"زه په دې عمر کې له خپل صحت څخه راضي یم" .

یو وخت مې د کره کتنې په هکله څه پوښتنه ځنې وکړه . مفصل پر وږغېد او په ضمن کې یې خپل زوی ته وویل : هلته وگوره هغه د نقد په باره کې زما لیکلي ناچاپه کتاب ورته راواخله . کله چې مې د کتاب پاڼې واړولې

راواړولې د ده په لاس ليکلی ضخيم کتاب و، چې د ادبي کره کتنې پر ټولو اړخونو يې رڼا اچولې وه .

بل وخت مې په مکه مکرمه کې د رباط افغاني په هکله څه معلومات ځني وغوښتل . د خپل کتابتون يوې الماری ته په نغوته يې راته وويل :-

په دغه الماری کې د مکې مکرمې په هکله د تاريخ يو عربي کتاب سته، راوايې خله ويې گوره . ما چې هر څه وکتل کتاب مې پيدا نه کی، بيا يې راته وفرمايل - ښه وگوره ! په دغه الماری کې دغه کتاب سته . خوله بده مرغه د کتابونو د ډېرست له امله کتاب مونده نه سو .



اروابناد حضرت علامه رشاد د ليکوال په کور کې ۱۳۸۳ ل ...

د رباط افغاني د ټول کم و کيف په هکله يې بشپړ معلومات راکړل . بيا ولاړ سو له بلې خونې څخه يې د ده په لاس ليکلی ناچاپ غټ کتاب راواخيستی او سمدلاسه يې د کتاب هغه پاڼې راواړولې چې د رباط افغاني په هکله معلومات او د هغه د جوړېدو په باب د اعليحضرت احمدشاه بابا د فرمان متن پکښې راغلی و، کتاب د نامتو حافظ مرغزي پر شهنامه باندې د **حضرت رشاد** شرح وه . د رباط افغاني په هکله پر معلوماتو سربېره يې د اعليحضرت محمدنادرشاه د دربار د وزير احمدشاه خان، مولوي سيف الرحمان خان، اخوندزاده عبدالقيوم خان او مولوي سيد مبشر طرازي په باره کې هم هراړخيز معلومات راکړل . ما ورته وويل -

**رشاد صاحب** ډېره بخښه غواړم، ډېر مې په تکليف کړې. ويې مسل، نه څه تکليف دی، دا خو د تحقيق کار دی .

ښه له مړيني خو چاره نسته . **حضرت رشاد** مو اوس له لاسه ورکړی دی، خو د هغه آثار راپاته دي . اما څه فايده چې په موږ کې تر اوسه دونه همت مونده نه سو چې د هغه ټول آثار مو طبع کړي وای، او د هيواد په علمي او ادبي پرمختيا کې مو (چې زښت زيات احتياج هم ورته لرو) ستره گټه ځني اخيستې وای . د هغه څه چاپ سوي کتابونه هم پر نه چاپ حساب دي، ځکه يو يې د چاپ کيفيت ښه نه دی (پخوا چاپ سوي دي) او بل يې د تېراژ د کموالي له امله ناياب سوي دي او دوهم ځلي نه دي چاپ سوي .

دغه چاپ سوي او ناچاپه آثار چې شمېر يې د (۱۰۰) په شاوخوا کې دي ټول بايد چاپ سي . ځکه که چاپ نه سي ډېره ده چې په دې د پېښو او حوادثو په بلاربه خاوره کې خدای مکړه لکه نور ډېر دغسې آثار له منځه ولاړ سي، هلته به د ارمان گوتې مروړو خو څه به مو په وس نه وي .

زما نظر او وړانديز دا دی چې -

په دې هکله دولتي چارواکي په تېره د هيواد د مرکز او کندهار د کلتوري چارو دنده وال سملاسي وړ او جدي گامونه پورته کړي، د هغه د ټولو قلمي او ناچاپه آثارو او د هغه د غني کتابتون خوندي کېده ډاډمن کړي .

کتابونه يې په کندهار کې د **علامه رشاد** په نامه د يوه ولسي کتابتون په جوړېدو او پرانيستو سره د مطالعې د مينه والو او پوهانو او څېړونکو د لوستنې او گټې اخيستنې لپاره چمتو کړي او د چاپي او ناچاپو آثارو چاپ ته د چمتو کېدو او چاپېدو لپاره دي يو باصلاحيته جرگه گی وټاکي او لازم امکانات دي په اختيار کې ورکړي څو ان شاء الله دغه ټول ناچاپه ارزښتناک آثار د طبعې په گڼه ښکلي او د پوهې او ادب د مينه والو سترگې يې په کتلو او لوستلو روښانه سي .

ځیرمن / کابل

# د ارواښاداکاډمیسین پوهاند علامه رشاد

# د آثارو سره باید څنګه چلند وسي

# ؟؟؟

دا ســمه ده چـي ارواښـاد اکاډمیســین پوهانــد **عبدالشکور رشاد** پر افغان او افغانستان مین شخص و، له افغان و افغانستان سره د ارواښاد مینه له دې هم ښه ترا څرګند یدای سي چې د نړۍ هر هیواد ته د تګ او پناه اخیستني لاري ور ته په بشپړه توګه خلاصي وې، خو هغه ارواساد هیڅکله هم له افغان و افغانستان پر ته په بل ولس او هیواد پوري زړه غوټه نه کړ او د خوښی او خواشینی ټول پړاوونه یې په خپل ویاړمن ټاټوبي کي تېر کړل .

خو ارواښاد **اکاډمیسین پوهاند رشاد** یوه داسي نړیواله انساني هستي او پانګه وه چې په یوه ټبر او یوې کوچنی جغرافیوي سیمي پوري به د هغه ارواښاد د شخصیت او علمیت تړل له انصافه لیرې چاره وي . کله چې د ارواښاد **استاد رشاد** د مړینې زړه بوږنوونکی خبر خپور سو، نو ځینو ځوانانو د هغه د علمیت او شخصیت په اړه داسي مر کې وکړې چې هغه یې د پښتنو او افغانستان ویاړ وباله . زما په اند د ارواښاد **رشاد** علمیت او شخصیت هیڅکله په دغه لنډ تنګ جغرافیوي چاپیریال او یوه کوچنی انساني ټولنه کي نه سي ځایېدای، **پوهاند رشاد** د پښتنو څه، چې د افغان و افغانستان ویاړ هم نه و، بلکې په اوسني پېر کي د آسیا او په ټولیز ډول د ارتې علمي نړۍ د ویاړ یو ځلاند ستوری و، خو دا به نو د لوی ښتن د حکمت پر یکړه وه چې د هغه د بابر کته ژوندانه ډېره یې په پښتني چاپیریال کي د تل لپاره مړه کړه .

تاروېژی ختیځ پوه مار کنسټرن وایي

"ما د پښتنو په ژوند یو کي ښه او په مړیو کي بد کس ونه موند" . نو تر دې مهاله لکه چې لازم وه هغسي موږ د ارواښاد اکاډمیسین **پوهاند رشاد** په قدر نه وو پوهېدلي، خو چې اوس د ابدیت له جوپې سره مل سو نو تر دې وروسته به د هغه د شخصیت او علمیت په قدر پوه سو .

خورا ډیرو کلونو ته اړتیا ده چې د ارواښاد **علامه رشاد** آثار راټول، مطالعه او څه چې نابشپړ پاته دي څه ناڅه بشپړ کړای سي . د ارواښاد **علامه رشاد** په قلمي ناچاپ آثارو کي ډېر داسي علمي آثار سته چې زما په اند په اوسنی افغاني ټولنه کي د هغو د موضوعاتو د بشپړولو او روښانولو توان هیڅوک نه لري .

په خواشینی سره باید ووایو چې د وخت حاکمو رژیمونو د دې ستري علمي هستی له علمه لکه چې لازم و، هغسي ګټه وانه خیسته . د هغه د خېړنیزو چارو د ښه والي لپاره یې څه ځانګړي تدابیر ونه نیول . د هغه د روغتیا ښه والي ته یې هیڅ پاملرنه ونکړه .

د افغانستان لیکوالان او ادیبان په یوه خوله، له خپل دولت او په ځانګړي ډول له خپل منتخب ولسمشر څخه په کلکه دا غوښتنه کوي چې د ارواښاد اکاډمیسین پوهاند **علامه رشاد** د شخصیت د لمانځلو لپاره دي د نوبل جایزې ته د هغه نوم وړاندي سي، او هم دي د هغه د نابشپړو آثارو د بشپړولو لپاره دي یوه مجهزه ټولنه جوړه کړي چې د هغه د نابشپړو آثارو د بشپړولو دنده پر غاړه واخلي . دولت ته لازم دي چې د هغه د ناچاپه آثارو د چاپ لپاره ځانګړې

بودجه جلا کړي او په دې توګه د ارواښاد **علامه رشاد** په علمي انوارو افغاني ټولنه منوره کړي .

دا خو زما د زمانې د ناخوالو په اړه د زړه خوخوالي وې، اوس غواړم چې د یوې ډېرې مهمې موضوع په اړه درسره خو یادوني او سپارښتني شریکې کړم :

تېروتنې (تېروتنې)

تېروتنې د ارواښاد استاد اکاډمیسین پوهاند **عبدالشکور رشاد** یو کوچنوټی، خو خورا ارزښتمن اثر دی، چې په ۱۳۸۲ لمریز کې د ختیزې سیمې د آزادو ژورنالیستانو او لیکوالو د اتحادیې له خوا په جلال آباد کې د **پوهاند استاد رشاد** د علمي سیمینار په ویاړ د (۵۰۰) ټوکو په شمېر په دانش کتاب پلورنځي کې چاپ سوی چې دا موضوعات په کې څېړل سوي دي :

- آیا رښتیا هم بیدل نوی عروضي بحر را ایستلی دی؟
- دا تاریخي ماده چا موندلې ده؟
- آیا دوهم خلیفه د نوشېروان په وختو کې زوکړی و؟
- مامون که هارون؟ آیا رښتیا هم یحیی برمکي د مامون په وختو کې مړ دی؟
- آیا په آل تمغا کې آل د اولاد معنی لري؟
- د حضرت محمد ﷺ ګور د مسلمانانو قبله نه ده او زمزم د کوثر چینې ته نه ویل کیږي .
- کاکړ که غلجي؟
- علي زی که غلزی؟
- ابوالنورین که ذوالنورین؟
- آیا رښتیا ده چې د ساکیامونی بودا او مهاراجه اشوکا تر منځ زمانې واټن سل کاله و؟

- د لوی احمد شاه بابا د مرګ په نېټه کې اختلافونه .

د فاضل مینه ناک استاد **اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد** له شخصیت او علمیت سره چې څوک اشنا وي، نو د هغسې ستري علمي هستی او پانګې له لاسه ورکول هیڅکله نه سې زغملای . الله ﷻ دې یې ګور له انوارو ډک کړي، ارواښاد لا خپل تلپاته هستوګنځي ته نه ورسېدلی، بېلتون یې خورا ګران و، ومي نه سو زغملای، خوب مي له ستر ګو والوت، د شپې پړاوونه هم د سپېدو خواته په لنډېدو وو، د کتابتون له یوې تاقچې مې د (تېروتنې) په نامه د ارواښاد استاد نوی کتاب راواخیست . د هغه ښکلي بشاشې او مهرباني څېرې ته مې خورا ډېره شېبه په ځیر ځیر وکسل، ډېرې اوښکې مې ورته تویې کړې . ډېر درونداو د نه زغملو غم و، خو د تقدیر پرېکړه وه له منلو پرته یې چاره نه وه .



د ښي لوري ارواښاد علامه رشاد، ارواښاد مولوي محمد امین خوګیاني، ارواښاد محمد ابراهیم خواخوږی او ارواښاد تقویم الحق کاکاخېل ـ خنجان دره ۱۳۵۶ ل کال

د ارواښاد استاد خوږو او عالمانه نصیحتونو د اورېدو په مینه مې د هغه پر "تېروتنې" مینه ماتوله څکه نو مې دغه (۶۶) مخیز ارزښتمن کتاب تر والناس پورې ولوست .

ارواښاد استاد ډېره مستدلله، مستنده، ژوره څېړنه کړېده، خو له بده مرغه په کتاب کې د پروف لوستنې پر مهال ډېرې تېروتنې سوې دي، نو په "تېروتنې" کې ډېرو تېروتنو دې ته وهڅولم او دا یې را په زړه کړه چې د ارواښاد **استاد پوهاند رشاد** لیکنې او څېړنې چې څومره مستدللې، مستندې، ژورې، کره او پوره دي هومره یې باید د چاپ پر مهال خورا کلک او داډمن اهتمام وکړه سي . خدای مکړه هسې نه چې د هغه ارواښاد له آثارو سره په بې پروایي او بې احتیاطی مو د هغه علمي او ثقه شخصیت اروا ته ربړ او کړاو رسولی وي .

اوس په "تېروتنې" کي پروفي تېروتنو ته لږ تم کیږو، خو یوازې په دې هیله چې د غلطنامې په توګه وګڼل سي .

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۲ | ۲۱ | برزجهر | بزرجمهر |
| ۳ | لومړی | قائتی | قاانی |
| ۳ | ۸ | خوشگر | خوشگو |
| ۴ | ۵ | تکرېږي | تکراريږي |
| ۴ | (یکي راسي) باید له (عروضات) سره لګېدلی یا پرله پسې وای یاني پاراګراف بېخایه بېل سوی دی . | | |
| ۴ | ۲۰ | خوره | کېدایسي (غوره) سم وي |
| ۵ | ۱۵ | سلمان ساوچی | سلمان ساوجی |
| ۷ | ۱۵ | تعطیع | تقطیع |
| ۸ | ۴ | عروض الضایع | عروض الصنایع |
| ۸ | ۵ | باعتقاد خور | باعتقاد خود |
| ۸ | ۲۱ | اخش | اخفش |
| ۸ | ۲۱_۲۲ | کتابالبلغه فی اصول اللغه | کتاب البلغة فی اصول اللغة |
| ۸ | ۲۲ | زبده الصحایف | زبدة الصحایف |
| ۸ | ۲۳ | مفتاح السعاده | مفتاح السعادة |
| ۹ | لومړی | فی الشهر | فی الشعر |
| ۹ | ۴ | اخفتش نبیفه | مانا یې ناخر ګنده ده |
| ۹ | ۱۱ | رچن زحاف | رجز زحاف |
| ۹ | ۱۶ | شجره العروض | شجرة العروض |
| ۹ | ۲۴ | مجمع القصحا | بایي (مجمع الفصحا) وي |
| ۱۰ | ۳ | یتیمه الدهر | مانا یې څر ګنده نه ده |
| ۱۰ | ۱۵ | فراهیدلی | فراهیدی |
| ۱۰ | ۲۱ | دمفصولات | د مفعولات |
| ۱۰ | ۲۲ | په معفولات | په مفعولات |
| ۱۱ | ۱۳ | شعر د نثر په څېر لیکل سوی باید داسي وای<br>څو دي لاس رسيږي هومره څني تښته<br>دنیا توره مرهتې ده ادم خوار | |
| ۱۱ | ۱۳ | هرمره | هومره |
| ۱۱ | ۱۳ | څینې | څنې |
| ۱۱ | ۱۷ | ودې | ووې |
| ۱۲ | ۱۴ | له پره | لپاره |
| | څوارلسم مخ کي تر اصل متن وروسته او تر توضیحاتو دمخه باید د جلاوالي کرښه موجوده وای . | | |
| ۱۵ | ۱۷ | دارخواهی | دادخواهی |
| ۱۶ | لومړی | مملکت دادی | مملکت داري |
| ۱۶ | ۱۸ | په روڼ سره | مانا یې ناخر ګنده ده . |
| ۱۷ | ۸ | امیرالمونین | امیر المؤمنین |
| ۱۷ | ۱۴ | اسدالغابه فی معرفه الصحابه | (اسد الغابة في معرفة الصحابة) |
| ۱۷ | ۱۵ | پیغمبر | پیغمبر |
| ۱۸ | ۳ | پای لیکونه | سرلیک دی باید غښ وای . |
| ۱۹ | ۵ | حدیقه الحقیقه | حدیقة الحقیقة |
| ۱۹ | ۵ | کارنانه | کارنامه (؟) |
| ۱۹ | ۶ | تحریمه القلم و تجربه لعلم | تحریمة القلم و تجربة العلم |

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۱۹ | ۸ | مدس رضوي | مدرس رضوي |
| ۱۹ | ۱۴ | حديقه الحقيقه | حديقة الحقيقة |
| ۲۰ | ۲ | محزن | محزون |
| ۲۱ | ۸ | فضل (۱۹۳۵) هق زندان کي مړ دی . | فضل بن يحيى (۸۱۸م يا ۱۹۳ ق) کي مړ دی . |
| ۲۱ | ۱۰ | والهاکم | والحاکم |
| ۲۴ | وروستی | مصطلجات الشعرا | مصطلحات الشعراء |
| ۲۵ | ۳ | مصصلاحات الشعرا | مصطلحات الشعراء |
| ۲۷ | ۹ | استمولوژی | اتمولوژي |
| ۲۷ | ۱۲ | " " " | " " " |
| ۳۱ | ۷ | متن سمه مانه نه سندي سايي متن تري نيمگړی پاتي وي . | |
| ۳۱ | وروستی | مدينه الهرات | مدينة الهرات |
| ۳۴ | ۱۱ | ايت شريف نه دی ليکل سوی. خو ځای ورته سپين پاتي دی . | |
| ۳۶ | ۱۳ | هاتضا . . الما . . الما | هاتفا . . الماء . . الماء |
| ۳۶ | ۱۴ | فضافت هاجره | فخافت هاجرة |
| ۳۷ | د وروستی کرښي عربي متن سم نه دی . | | |
| ۳۸ | ۲۳ | محمدالحسن | محمودالحسن |
| ۳۹ | ۱۷ | له انا . . . ځخه | له "انا اعطينا . . . " ځخه |
| ۳۹ | ۱۸ | بهيري | بهيري |
| ۳۹ | ۲۴ | د تر درجه | مانا يي ځرگنده نه ده . |
| ۴۵ | ۴ | متن بايد پرله پسي وای پاراگراف بېخايه. بېل سوی دی . | |
| ۴۸ | ۹ | غزيزالدين | عزيزالدين |
| ۴۸ | ۱۱ | د برلس | د يارلس |
| ۴۸ | ۱۸ | ازاد وبلگرامي | ازاد بلگرامي |
| ۴۹ | لومړی کرښه | په نامه . . . | په "نامه عالم اداى نادرى" |
| ۴۹ | ۹ | راوي ده | راوړي ده |
| ۵۱ | ۵ | گلثوم | کلثوم |
| ۵۱ | ۶ | " | " |
| ۵۱ | ۱۲ | تېروتنه د "زر" | تېروتنه د "ذو" |
| ۵۲ | ۳ | يوه ضد | يو ضد |
| ۵۲ | ۶ | ضماک | ضحاک |
| ۵۳ | ۸ | منحوس | منحوس |
| ۵۳ | ۱۵ | . . . الدريه . . . البريه | . . . الدرية . . . البرية |
| ۵۴ | ۱۷ | گلثوم يا ام گلثوم | کلثوم يا ام کلثوم |
| ۵۵ | ۱۴_۱۵ | يهند "اوسنی هند" | |
| ۵۵ | ۱۸ | د يهند (هند) | |
| ۵۶ | ۳ | G.U.K | C.I.K |
| ۵۶ | ۷ | G.W.K | C.U.K |
| ۵۷ | ۶ | اوسنی پلټنه | اوسنی پټنه |
| ۵۷ | ۹ | نوربودا . . . زړکړي | نود بوداد زوکړي |
| ۵۸ | ۶ | چندر گيت | چندر گپت |
| ۶۱ | ۳ | ډېټي حيات خان | ډېټي حيات خان |
| ۶۱ | ۶ | د "د افغانستان . . . " | د "افغانستان . . . " |
| ۶۱ | ۱۴ | اعتضاد السلطنه | اعتضاد السلطنة |

پاته په (۹۴) مخ کي

پروفیسور راز محمد راز /پښین

# له کتابونو جوړ

# یو ژوندی سړی

"برایي دي بي بي سي واورېده؟
رشاد صاحب مړ دی،
سبا یې جنازه و کندهار ته راوړي !"
د هغه په لهجه کې د یوه ژور غم او تاسف ځرګندونه ډېره نمایانه وه. زما همکار او د پښتو اوچت شاعر او لیکوال فیض محمد شهزاد په سهار کښې په کالج کښې دا په ویر لړلې خبره راته واوروله .
زه د هغه د لهجې یاس او د خبرې سترې عبارت په زړه کښې د خزان د درختو په څېر بې امانه پرېښودلم .
زما یادېږي زما د زړه پر انګړ باندي یو سپېره، بې نومه غوندي ساړه احساس کډه واړوله، او په غیر ارادي توګه مي د ځان سره د خود کلامی په انداز داسي وویل :
" سه نو آخر څراغ هم مړ سو !"
اوس چي پس له لسو کلونو پر پښین باندي په دې "توره سیله" کښې یوه درنه واوره وسوه، او یوه ورځ چي د واوربن دښت د سیل کولو لپاره د پښین د شرق و خواته د خپل ځان په همراهي کښې ووتم نو د رشاد صاحب د مرګ د اولیني خبري د رد عمل په ساړه احساس مي سر ورسېدی. د ده د مرګ خبري زما د زړه پر غولي هم داسي سوړ احساس خپور کړی و، د کوم سره چي د پښین د مځکي زړه مخامخ و .
سوال دا دی چي زما څه و؟
ما خو د ده سره د لیدلو کتلو شرف هم په برخه نه درلود. فقط له لیري لیري یو تجرېدي، لیکن معروضي غوندي رشته مي سره درلوده، زده کړه خو ما له نورو ډېرو خلکو څخه هم کړې وه، خو د رشاد صاحب د مړیني خبر زه ولي دومري ډېري ورځې په داخل کښې ویجاړ او یخ ز‌ښی وساتلم؟
مړ ګونه خو د اروا ښاد حمزه شینواري، غني خان او قلندر مومند هم ډېر درانه وو، بیا د ده د مرګ د زیان احساس ولي دومره ژور ښکاري؟
ما څو ورځي په دې حواله چي خپل تحلیلي او تجزیاتي جاج واخیست، نو بیا په دې نتیجه ورسېدم چي :
"کله بهادر او زړه ور خلک د مځکې له مخه کډه وکړي نو د پاته خلکو زړونه له پردو وځي" .
عجبه خبره نه ده چي زه د رشاد صاحب د علمیت او فکري مقام د ویر کولو پر ځای، د هغه د بهادرۍ او زړه ورتیا تر احساس لاندي، دي زیات یادومه !
د روس بېساري ناول نګار "دوستوفسکي" یو ځای ډېره په زړه پوري او رښتینې خبره لیکي، دی وایي چي :
جدید تعلیمي نظام د بزدلانو او کم همتو یو نه ختمېدونکی فوځ پیدا کوي" .
لیکن د افغانستان د اوږدې غمیزي په تناظر کښې د جدیدیت د اثراتو باوجوده رشاد صاحب نه صرف دا چي یو غښتلی او مبارز عالم سړی و بلکې د بزدلۍ او کمهمتۍ له تهمت څخه خلاص زړه او ذهن لرونکی یو نر پښتون و. رښتیا خبره هم دا ده چي زه د ده له علمیت او رسا فکر

ځخه دومره زيات متاثر نه يم لکه څومره چي زه د ده د زړه ورتيا، رښتني وابستګی څخه .

ما **رشاد صاحب** لږ و ډېر ويلی دی، ليکن ما هغه په پوره توګه نه دی لوستلی، ولي چي د يوې غير منطقي او غير انساني کرښي په سبب د لر و بر افغان تر منځ کلتوري او علمي اړيکي. د نېستی سره نن هم برابري ښکاري او د ليکي د دواړو غاړو د ليکوالو او شاعرانو تر منځ د رابطو فقدان دی، زما د **رشاد صاحب** سره اولينه پېژند ګلوي د ارواښاد بېنوا د ژباړل سوي کتاب "ګيتانجلي " په سريزه کښي وسوه.



دا زما د ادبي ژوند ابتدايي دور و، چي زه د ټېګور، بېنوا او **رشاد صاحب** سره معارفي سوم او دا پېژند ګلوي اوس هم په پوره معروضيت سره دوام لري .

زه نه يم خبر چي و خپل نفسياتي دې ساخت ته څه نوم ورکړم چي تر عالمانو مي بهادر او زړه ور خلک ډېر ښه ايسي؟ ځکه خو د ستر مبارز خوشال خان او ارنسټ همينګوی (چي يو بې خوفه ليکوال و) زيات قدردان يم .

**رشاد صاحب** زما په نزد هم په دې امتيازي ډله کښي د شموليت عزت په برخه لري .

هغه د ثور د انقلاب څخه تر خپلي مړيني پوري د خپلي مقدسي خاوري سره د وفا په حالت کښي له کړاوونو ډک ژوند تېر کړی، ده په علمي توګه او په ډېره زړه ورتيا او سپېڅلتيا سره خپله دا وابستګي تر سره ورسوله . ده د سختو حالاتو په سبب د موسمي مرغانو په څېر و پرېدو مځکو ته کډه نه وکړه، بلکي د کنول د ګل په شان يې دا خبره غوره ګڼله چي د جهيل د اوبو د وچېدو سره د خپلو ريښو د تشنه چاودلي خاوري د پاسه اخيري ساه واخلي .

سوال دا دی چي د مرګ له خوفه کوم يو وګړی خلاصيت موندلی دی؟ زما په نزد هغه باشعوره څوک چي د "نامعلوم" په مينه اخته زړه او ذهن ولري او وخپل ژوند ته په مابعد الطبيعياتي او کايناتي تناظر کښي د کتلو فلسفيانه نظر او جمالياتي بصيرت يې تر سره کړی وي، په يقيني توګه ويلای سم چي **رشاد صاحب** په دې صفتونو سره

متصف زړه او ذهن درلود نو ځکه د مرګ له خوفه یې مبرا ژوند تېروی .

د **رشاد صاحب** د علمي شخصیت یو بل مثبت اړخ (پلس پوائنټ) دا و، چې دی د "ټالسټائي" د شاهکار ناول "جنګ وامن" (War & Peace) د یوه علمي کردار په څېر د ډېرو مطالعو په سبب د "کنفیوژن" ښکار هم نه و، د دې کردار د مړینې پسته چې تعزیت کوونکو د هغه د هر وخت د حاضر باش نوکر څخه پوښتنه وکړه چې د ده په نظر کښې کاونټ څرنګه سړی و؟ نو نوکر هسې ځواب ورکړی چې :

"ډېر ښه سړی و، لیکن نن چې مطالعې یې تر حساب زیاتې کولې نو ځکه د فکر د انتشار ښکار به و". دلته د کاونټ او **رشاد صاحب** تر منځ یو واضح فرق په نظر راځي، هغه د فکري الجهنوفو څخه خلاص زړه او ذهن درلود او د خپلې خاورې په معروضي حقیقتونو او په اجتماعي نفسیاتو او غوښتنو پوهـ یو روښن خیاله دانشور سړی و، هغه د رجائیت ډېره په خپلو لاسونو کښې ژوندۍ ګرځوله . او د Futurism (مستقبلیت) د تقاضو په حواله د یوه رسا ذهن څښتن و . د تاریخ پر دې وله باندې چې افغان قوم یو نوی سفر اغاز کړی دی د داسې یوه رهنما بېلتون راته یوه غټه حادثه ښکاري .

ول ډیورینټ په "داستان فلسفه" کښې د ژوند تعریف په دې لفظونو سره کاندي :

"په زمان کښې زموږ و قیام ته ویل کیږي" .

دلته مې دا سوال پورته کولو ته زړه غواړي چې :

"آیا هر سړی چې د وخت د محیط څخه و نامعلوم دربار ته ووځي نو به یې موږ حتماً مړ ګڼو، او که څه خلک د وختونو څه ماورا پر خپل فکري اساس باندې بیا هم دلته ابدي ژوند درلودای سي؟

په دې تناظر کښې مې زړه غواړي چې د خپل احساس څرګندونه وکړم، او هغه دا که څه هم په رسمي توګه دا یو څو کرسې د **رشاد صاحب** د اصطلاحي مرګي په مناسبت تر قلم باسم خو په حقیقت کښې د ده د ځانګړي فکر او لوړو ادبي آثارو پر اساس باندې زه دی یو ژوندی سړی ګڼم، هم دا سبب دی چې په دې مضمون کښې د ده لپاره هیڅ یو ځای د ارواښاد کلیمه نه ده لیکلې، ولې چې زړه مې نه منې چې پر یوه ژوندي سړي د مړي ګمان وکړم، او هم دا سبب دی چې طارق رشاد او د هغه و کهول ته مې تر اوسه یوري تعزیت لیک لا نه دی ورلېږلی .

محترم مجید بابې چې کومې دوې پاڼې (ورقې) رالېږلې دي نو پر هغه باندې د **رشاد صاحب** باوقاره عکسونه ثبت کړل سوي دي، او د عکسو، نه په پس منظر کښې د ده و شاته ضخیم ضخیم (پنډ پنډ) کتابونه هم ښکاره کیږي ما چې کله په خالي ذهن سره په خیر خیر د ده و څېرې ته کتل نو په تحت الشعوري خوا له یو ډېر غیر منطقي خیال مې را په زړه سو، او د ځان څخه مې دا سوال وپوښتی چې آیا داسې نه ښکاري چې د ده وجود دې هم له دې کتابونو څخه ترتیب کړل سوی وي؟

خبر نه یم چې ولې، دی هم د دې کتابونو څخه جوړ سوی یو انسان په نظر راغلی؟

ولې چې کتابونه کله هم نه مري، نو زه **رشاد صاحب** (چې زما په نزد، د کتابونو څخه تشکیل سوی وجود لري) څرنګه مړ ومنم .

علمیت یوه تجریدي کلمه ده، لیکن د **رشاد صاحب** د څېرې په تاثر کښې علم په پوره شرع سره د ابلاغ او وقار عزت په برخه لري، د ده پر څېره باندې د ژوند د تفهیم مقدسې سپېډې په پوره معروضیت سره سپېڅل سوي ښکاره کیږي، هغه د شنه سمندر په څېر یو بسیط زړه، او بې پایانه علمي مدوجزر درلود .

د فلسفې په تاریخ کښې المانوي ښساري "فلسفي" ایمانیول کانټ په دې حواله د امتیاز څښتن بلل کیږي چې دی مظهري او موضوعي حقیقتونه بېل بېل ګڼي، او دا ادعا لري چې موږ ظاهري صورتونه خو تر ادراک لاندې نیولای سو لیکن اشیاء بالذات (Things in itself) زموږ د شعور په حصار نه کښېوزي . یعني دا چې اشیا په خپل داخلي حقیقت کښې د څه نوعیت حامل صفت دی یا کوم جوهر لري، موږ د دې ادراک نه سو کولای .

که یو غټ جسارت او بې ځایه خودنمایي نه وبلل سي نو ور سره د اختلاف کولو حوصله کومه . زما نظر دا دی که موږ د یوه څیز یا وجود د صفتونو سره پېژند ګلوي پیدا کوو نو دا د دې سره برابره خبره ښکاري، ګوا موږ د اشیاو بالذات، پټ حقیقتونه پېژندلای سو، زما په نزد د اشیاوو د صفتونو ادراک د هغو د موضوعي حقیقتونو د تعارف، نعم البدل ګرځي . د دې وضاحت کولو مقصد مې دا ویل دي چې زموږ ممدوح نه صرف دا چې د ژوند په واړه معروضي حقیقتونو مدرک زړه او ذهن درلود بلکې ده ژوند بالذات (Life in itself) د هغه د ټولو موضوعي او جوهري صداقتونو په تناظر کښې هم ښه پېژندی .

زما په خیال کښي په فکري او علمي حواله غټ سړی هغه څوک دی څوک چي د ژوند په فلسفه منور زړه او ذهن ولري. څوک چي د ژوند د ټپو امکاناتو ښکارندوی وي، د مرگ جبلت خو پېژني لیکن د خوف ښکار ورځني نه وي، او د قائم بالذات خدای ﷻ سره خپله ځانگړی دریافت سوی شل اړخیزه رشته ولري. د عبدیت باوجوده د بېکسی د جبریت ښکار نه وي، هم د جدیدیت او مابعد الجدیدیت په تناظر کښي د ژوند و ټولو موضوعي او معروضي سوالونو ته د خپل فکر و نظر پر اساس باندي سکښتي ځانگړي درست یا غلط ځوابونه ولري. زه باور لرم چي **رشاد صاحب** زما په دې معیار ختلی، بلکي تر دې هم زیات غټ یو عالم سړی و.

ما چي کله د **رشاد صاحب** په حواله دا مضمون لیکی، نو یو وخت په فکري حواله په ځان کښي معطل غوندي پاته سوم، چي په بیر ته د شعور و افق ته راپورته



سوم نو ځان مي په یوه زړه پوري نابلده مشغوله بوخت ولیدی. او هغه دا چي څو عشرې وړاندي د خپل مېړه پلار، دستخطونه مي دوام داره پر یوه سپین کاغذ باندي ثبت ایښي وو.

زه د خپل پلار د جعلي دستخطونو په کولو کښي د مکتب په زمانه کښي ډېر ماهر غوندي هلک وم. کله چي به مي مکتب ته زړه نه غوښت نو به مي له خانه د پلار په غلا. یو درخواست د رخصتي په عنوان و مکتب ته ورولېږی او د پلار جعلي "دستخط به مي وربانـدي ثبت کړ. د معلمانو لپاره چي د دې پر صداقت باندي باور وکړي بله چاره نه وه.

په دې کار کښي زه دومره ماهر وم چي د ضرورت پر وخت به مي دا دنده د نورو ورونو لپاره هم کوله.

سوال دا راته پېښ سو:

"آیا دا کوم یو نفسي صورت حال دی چي زه یې تر دومره لیري ماضي پوري شاته یوړم د خپل وړوکوالي او د پلار د یاد پر سرحد یې ودرولم؟ ورسره د دې معمی او عقدې سره مامخ وم چي د **رشاد صاحب** د اصطلاحي مرگ او زما د پلار د یاد تر منځ د زمان د فرق باوجوده نو کوم محسوساتي تړاو سته چي زه یې تر دام لاندي نیولی یم؟

که څه هم دا دوې خبري په منطقي حواله په خپل منځ کښي هیڅ ښکاره اړیکي نه لري لیکن د تحلیلي او تجزیاتي ژور غور و فکر پسته زه و دې نتیجې ته ورسېدم چي شاید د تاریخ پر دې ولـه باندي (یعني د **رشاد صاحب** د اصطلاحي مړیني بعد) پښتو ژبه هم د هغه کیفیت سره راته مخامخ ښکاري. د کوم سټړي کیفیت او بېوزلی سره چي زه د خپل پلار د مړیني پسته روبرو پاته سوی ومه.

هسي هم د شاعرانه بصیرت پر اساس باندي د خپلو تیرو وختونو هغه محرومیت او د پښتو ژبي د اوسني بې اماني کیفیت د یوه او بل سره ډېر مماثل راته بریښي.

د **رشاد صاحب** د اصطلاحي مرگ دومره ږوږ دی، چي زړه مي غواړي یو څه وخت لپاره یې زه هم مړ وگڼم، خو د دې منلو سره سم یو عجیبه بدگماني هم په زړه کښي لرم او هغه دا چي **رشاد صاحب** به په خپل مرگ کښي په ارادي

توګه څه نه څه لا نن ضرور درلودلی وي. زما یقین دی چې دی د خپل بې کناره علمیت او وجودي بصیرت پر اساس باندې د جبلت زیست (Eros) او جبلت مرګ (Thanatos) په بنیادي حقیقتونو او د هغو په باهمي مجادله ضرور خبر سړی و، هم په دې تناظر کښې پر **رشاد صاحب** باندې دا اشتباه لرم که هغه د مرګ د جبلت سره په ارادي حواله موافقت نه وای درلودلی نو زه یقین لرم چې د ده د وجود پر مڅکه به هیڅکله هم د ژوند جبلت د مرګي له جبلت څخه ماته نه وای خوړلې.

سوال دا دی چې ده به د جبلت مرګ سره دا مرسته پر کوم اسبابو باندې کړې وي؟

یا به دا سوال په دې ډول وپوښتو چې دی ولې مړ سو؟ زما په نزد د دې دوه درې ځوابونه کېدی سي، یو خو **رشاد صاحب** په دې حقیقت خبر سړی و، چې دی د ظاهر څخه د پرده کولو باوجوده پر خپل علمي اساس او بېسارو تخلیقي آثارو په سبب د پښتو ادبیاتو په تاریخ کښې په امکاني حواله یو ابدي ژوند درلودلی سي او بله خبر دا چې دی د مرګ او ژوند په وحدت باندې پوهېدی ده ته دا حقیقت عیان و چې څرنګه چې ورځ او شپه د کیفیتي توپیر باوجوده د یوه وخت دوه صورتونه دي هم داسي ژوند او مرګ د یوه کایناتي ژوند دوه جدا جدا مظهرونه دي. زه ګمان کوم چې **رشاد صاحب** د مرګ د دروازې پر هغه بله خوا د "نامعلوم" د پېژندګلوۍ لپاره دا سفر مخ پر وړاندي اختیار کړی دی، هغه چې د مرګ او ژوند په حقیقت پوه زړه او ذهن درلود نو ځکه یې د ژوند په واړو مرحلو کښې د بې خوفۍ صفت سره اراسته وینو.

زه ګمان کوم ده په دې سبب هم د مرګ د جبلت سره موافقت درلودلی وي چې هغه ته دا حقیقت په ښه توګه عیان و که د ده په څېر غښ خلک مړه نه سي نو د راز په څېر کوچني خلک بیا نه سي غټېدی، ده ته عیان وه چې تر غټو ګڼو درختو لاندي بیا کوچني بوټي وده نه سي کولای.

**رشاد صاحب** واړه ژوند د ایثار او قرباني په لوړ نفسي صورت حال کښې تېر کړي، په یقیني توګه ویل کېدای سي چې ده د پښتو ژبې په افقي او عمودي ارتقا کښې یو تاریخ ساز کردار تر سره ورسوی، د محترم عمر ګل عسکر صاحب وینا ده چې زموږ د بې ساري ممدوح اوس هم د برش کتابونه پر متنوع موضوعاتو باندې ناچاپه پراته دي دا هیله به مې بښایه نه وي چې د محترم کرزي صاحب د علمي هیواد مل صاحب او جناب حبیب الله رفیع صاحب په موجودګي کښې به دا ارزښتناکه آثار د دوی د ذاتي دلچسپۍ په سبب د چاپ عزت په برخه ولري.

**رشاد صاحب** واړه ژوند د پښتو ژبې په چوپړ کښې بې غرضه تېر کړی او بیا یې د "نامعلوم" د سفر پر اساس و موږ ټولو تر شا پاتو کوچني شاعرانو او لیکوالو ته د ترقۍ د کولو مواقع او مساعد حالات راپر ښسول. د پښتو ژبې دې غښ محسن په تلو تلو کښې موږ په ذاتي توګه تر خپل احسان لاندې ونیولو. هغه قومونه چې د خپلو اکابرینو عزت پر خای ساتي نو د سیال قومونو په وړاندې د افتخار او سرلوړې ژوند تېروی، په دې حواله مې زړه غواړي چې یوه کوچنۍ کیسه لوستونکو ته وکړم:

کله چې په الجزایر کښې د آزادی جنګ جاري و، نو ژال پال سارتر د فرانسوي حکومت د جبر او استبداد ډېره غندنه کوله د فرانس د هغه وخت وصدر ډیګال ته یې د لیري سیاسي ستونزي پېښې کړې وې، ژال پال سارتر و، خو فرانسوي لاٸن د الجزایر د مسلمانانو د سیاسي غوښتنو کلک پلوی و، په دې کشاله کښې مشرانو و ډېګال ته مشوره ورکړه چې دی باید چې د "موجودیت د فلسفې" لوړ شارح سارتر په جېل کښې واچوي، نو ډېګال چې کوم ځواب ورکړی هغه تاریخي ارزښت لرونکی یو درخشان ځواب دی، ډیګال ورته وویل چې:

"ژال پال سارتر خو فرانسیس دی زه فرانس څرنګه په جیل کښې واچوم؟

د اوسني جمهوري افغان حکومت څخه هیله کوم چې د خپلو مړو او ژوندي علمي اکابرینو عزت به هم په دا ډول پر خای وساتي.

د یوه عجیب تضاد سره مخامخ یم، ناست یم مضمون د **رشاد صاحب** د مرګ په مناسبت د کندهار مجلې لپاره لیکم او په بله خوا د خپل زړه د دې ادعا سره موافقت هم ښکاره کوم چې په بیا بیا راته وایي:

"د **رشاد صاحب** په شانتي خلک هیڅکله هم نه مري". هغه د ټېګور، ټالسټایي، خیام، پوشکین، خوشال خان او ډېرو نورو ابدي ژوندون لرونکو خلکو په څېره کې زموږ په شاوخوا کښې راسره اوسي مرګ د ده وادبي معروضیت ته هیڅ ضرر نه سي رسولای.

ولي چې تر ډېره حده پوري د زړه د دې ادعا پر صداقت باندې یقین لرم نو په تکرار سره بیا وایم چې د ژوندي **رشاد صاحب** د اصطلاحي مرګ



د پوهاند علامه رشاد بابا په یاد

# د شعر سمندر

او

# ګرومجنی ورمې

حبیب الله رفیع

## د استاد رشاد ویرنه

په روښانه ورځ راخورلی یې تور تم دی
دا په څه را اورېدلی پر موږ غم دی؟
نن د علم علم سر اینبی پر ځمکه
د عالم وفات، وفات د ټول عالم دی
چې قبله یې د حاجاتو نړېدلې
د قلم د قبیلې پر کور ماتم دی
هغه ژبه پاته سوې له خبرو
چې هر حرف یې منظم او منسجم دی
هغه زړه نن له غورځنگه دی لوېدلی
چې د علم او د پوهې جام جم دی
هغه مغز پاته سوی دی له کاره
چې د هر علم قاموس او معجم دی
هغه لویه هستي د روميي گورستان ته
چې د علم گلستان پرې مفخم دی
د رشد غونډي پوهاند له موږ بېل سوی
نن د پوهې په کاله کې وير راسم دی
د استاد غونډي انسان یې راته ښکار کړ
د سږکال د لېندۍ غشی ډېر محکم دی
ځمکې ویاړه خپله غېږ ورته بخمل کړه!
زحمې زړه درځي استاد مو محترم دی

سعید لودین کانادا ـ تورنتو

## د خدای بخښلي علامه رشاد په یاد

خواره قافله مو بې سالاره سوه
سخته مو لا نوره راته لاره سوه
موږ خو د مرگو لوټ تباه کړي یو
ښکلې پښتنه غاره بې هاره سوه
تل چې یې په زغرده حق ته حق ویل
هغه منصوري چیغه قراره سوه
چا ویل علامه "**رشاد**" وفات وکړ
ما ول آه! پښتو مو نن بې پلاره سوه

حبیب الله قلم مل

## غزل

سپوږمۍ وه که دا لمر و، د اسمان له غېږي ولوېد
په شپه کې دي فلکه کهکشان له غېږي ولوېد
پېرۍ پېرۍ به میشت وي لا په زړو کې د وگړو
تنها "**رشاد**" د ژوند د دې کاروان له غېږي ولوېد
د مرگ په غشي ولگېد نن زموږ د فخر څلی
را گړوب سو او راپرېووت د افغان له غېږي ولوېد
تشبه مونډلای نسم "**علامه**" ته په قاموس کې
په داسي لو څېړنه کې مي توان له غېږي ولوېد
"**رشاد**" د ارشاداتو راته ډېر څه دي پرې اینښي
دا نه چي لوی "**رشاد**" مو په تاوان له غېږي ولوېد
چې تولو ته محبوب و، او موږ واړه پر مین وو
د میني ستر سمبول مو د جهان له غېږي ولوېد
چې تل د "قلم مل" و، د کتاب سره ملگری
ملگرو نن مو داسي ستر انسان د غېږي ولوېد

۱۶ لېندۍ ۱۳۸۳

حاجي جمال الدین یاور

## د وقار ستوري

چې راولوېد له سما څخه د سهار ستوری
د ادب په ښکلا ښکلی د کندهار ستوری
د مشرق اسمان یې پرېښود په تورتم کې
خدایه کله به بیا کړې داسي اظهار ستوری
د رښتیني سهار زېری د پښتو و
ځلېدی د پښتونخوا پر مدار ستوری
ښه استاد د علمیت ژوندی مکتب و
علامه د هر دېوان د سینگار ستوری
د دښمن سترگي ړندې یې په شغلو وې
و د وخت و هر غدار ته د اخطار ستوری
نه د سترگو نه د زړه څه یې وباسي "یاوره"
په دردو یې ته لمانځه د وقار ستوری

عبدالمجید بابی

# اروانباد پوهاند علامه رشاد بابا ته

د پوهانو لویه پوهه
ستا له ویره ویر ویرجن دی
**لوی رشاده! لوی رشاده!**
ای د پوهي ستر بنیاده

ته د هسک د هستیِ ځلی
چي مرگی وای درنه لیري
د فرهنگ د کور سردار وې
د ویاړونو مو دستار وې

د رونه پرون دېووه وې
د ژهړي غوندي ځلیږي
نن مو هم ستا له پرونه
رون سبا ته له لتونه

د سپیره ارغند له مینې
د هري له بریده بر وې
د آمو د څپو څار وې
ایشیا ته هم په لار وې

زمونږ د ښار پر هر څه بر وې
تش د سترگو په کتو دي
ورسره همدغه سیمه
اخیست باج له دې اقلیمه

د ملالي روح لا خوښه
د میوند دگر دي رون کړ
تا یې ژیٔ په لپو درون کړ
د ایوب ستونی دي لوند کړ

پوهي لاس درته نیولی
د هستیو هستي ستا وه
ستا درشل کې فقر غوښتی
نورو هم ترې نذر غوښتی

د تاریخ د پلاز واکمن وې
پاني پټ دي لیکنی نغښتی
د (لودي) دور دي لاس کي
د (احمد) غازي لباس کي

د شینکي آسمان له ځنډو
او د پرخو حمل واره
سپیلني درته په دود وه
په سجود ستا د وجود وه

د ادب اوقیانوس کي
ستا د شعر درانه قیام ته
درته تیټ سر نهنگان وه
قیامونه لا حیران وه

د هیواد هیواد ږغونه
د ژوندون شبه شبه دي
ستا په هر نفس کي ځای وه
هم د خلکو هم د خدای وه

چي ليکني دي په خوځښت و
داسي لار د ميني جار سم
تا تري خار کړي د زړه ويني
چي پالي ميني په ميني

درته دا وياړونه بس دي
څوک يي نه سي بېلولای
ستا د زيار د خوند اورنگه
ستا له نومه ستا له څنگه

ستا پايښت وريکښي گورم
رنگ يي ستا له زړه اخيستی
هر يو توری دي جانان دی
پکښي پروت د زړه آرمان دی

هر څه ستا پوهي کي نغښتي
دغه ستا د ذهن نور و
په څېرنو کي اتل وې
که ازله سره مل وې

ستا د پوهي په ستاينه
د جمال او کمال رنگه
د سيد روح ده مشغوله
تا کړه دَل د تيارو پوله

تبحّر دي بحر ته لرز و
د څېړنو پراخو دښتو
د نوښت له مدّ جذ ره
خان اوبه کر ستا له فخره

که قبله وې نن د پوهي
د زمان او مکان لمر وې
د علمي تقوا امامه
د پرون ورخي باگرامه

د تخليق اوچت پاميره
فلسفه وې او شعور وې
ته احساس احساس نري وې
هم خيبر خيبر لري وې

د ارغند وې د سپين غره وې
ليري ليري دلته هلته
د خيبر او د بابا وې
د هر چا وې د هر چا وې

رون ضمير وې تفکر وې
هم څرگند او هم ښکاره وې
د تلپاتي ژوند انځور وې
د سپېره تا توبي نور وې

ستا بقا مور ته بقا وه
ای زموږ لوپدلي لمره
کاشکي روح د رسره مل وای
کاشکي تل ر ته په ځل وای

ته چي ولاړې موږ به څه يو؟
مرگی ستا پښو کي دَل دَل وای
کاشکي ته وای او ستا ژوند وای
او ستا لاس کي رامروند وای

هم (بابي) وې هم يې هيله
خو چي نه سوه خدای نه غوارو
چي ستا روح په خوښېدو وي
هم (**رشاد**) په يادېدو وي

فضل محمد پنهان

# مرثیه

استاده! ستا د هجر غم چې بې حساب سو
په نظر مې د دنیا هوس خراب سو

چې په مرګ دې د دنیا خوښي راحت ولاړ
اوس مې زړه په درد و غم په اضطراب سو

هیڅ ښادي مو پر زړه نسته بېله غمه
اوس پر موږ باندي حرام چې شیرین خواب سو

ستا په تللو خوشحالي ټوله راڅه ولاړه
اوس ښکاره راته د غم ټوله اسباب سو

په ارمان ارمان له موږ څه جلا سوې
چې د خاورو پر بستر باندي دي خواب سو

د بلبلو تر راک یې غم راباندې ډېر کړ
اوس د اوښکو څه مې جوړ یو لوی سېلاب سو

هر سړی به یې مجلس ته ارزومند و
هر سړي د زړه ارمان د ده اداب سو

تل یې به اشعار ویله په مجلس کې
اوس بندي په خاک بستر کې د تراب سو

دوست دښمن یې د صحبته بهرمند وو
چې ګویا به د خبرو په ګرداب سو

د غیرت دستار یې تل و پر سر باندي
چې دښمن بې له غیرته په عذاب سو

چې په ویر او په ماتم له موږ بېل سو
د قضا حکم چې وسو لاجواب سو

د مجلس یاران یې واړه په ماتم سول
چې د سترګو یې روان د زړه خناب سو

و تقدیر ته تدبیر هیڅ کولای نه سي
یونس بند ګوره په زړه کې د دریاب سو

پر هغو مخونو پرېوتلي خاوري
چې ښایست به د مجلس لکه افتاب سو

څه نه وزین دي دي فلک پر موږ جوړ کړي
اوس د موت جرس ناري کړې چې شتاب سو

ستمګر فلک ته ګوري څه بازي کا
فلک هیڅ دلسوزي نه لري قصاب سو

اوس مې سترګي سرې په مرګ د عالمانو
چې سپېرو خاورو کې پټ مخ کړ په حجاب سو

صد رحمت دي وي پر داسي عالمانو
د علمیت نوم یې ښکاره لکه مهتاب سو

دُر ګوهر به یې همېش تر خوله پاشله
هر کلام یې همېشه دُر نایاب سو

د مجلس پوهان یې ټول په غم غمجن سول
چې د اوښکو څه یې جوړ یو لوی سېلاب سو

زه "پنهان" چې د "**رشاد**" مرثیه وایم
اوس هغه استاد اوبه په مېو ناب سو

---

سم الله غرني

# ظالم خزان

دا خزان څومره ظالم دی ټول ګلونه رژوي
د بورا د خوږې مینې ارمانونه رژوي

پر هر ګلبڼ چې راسي هیڅ رحم ورباندي نه کړي
سربورده ته، بیخ هم یې سرونه رژوي

بلبل و بورا دواړه سپېره داګ ته کښېنولي دي
له پاره د سبا یې تل امیدونه رژوي

د ډېرا پروا یې نسته. باغوان که ډېر وژاړي
د ناز و نزاکت یې ټول نازونه رژوي

غرنی نه پرېږدي خندا ته د یو څو ورځو له پاره
د بلبل ساز و آواز او خندنونه رژوي

بې پروا دی "غرنیه" سیالي ورسره مکړه
دلته هلته، تن سبا دي ګلبنونه رژوي

# هغه څه سو؟

چي پر راټول به وه د پوهي او ادب ادیبان
هغه ادیب له موږ ولاړ هغه دربار اوس څه سو؟

طالبلعلمه ډلي. ډلي چي راتلل به دلته
د ادب تږي او بول هغه دلدار اوس څه سو؟

وړندو ستر گوتې د علم رڼايي چي بخښل
د مشکلاتو د حل هغه ستر ماليار اوس څه سو؟

چي به له خولې څه يې هر توری وتی مشک و عنبر
هغه خوله پټه سوه خواخوږو هاعطار اوس څه سو؟

اوبه کېدل د علم تږي چي يې فيض ځني ووړ
هغه د علم خزانه هغه خوږ يار اوس څه سو

د جواهرو کان وډک د لمر په شان نوراني
له هسکه ولوېد هغه لمر هغه سردار اوس څه سو؟

د ستونږو غوټې خلاصېدې د ده په گوتو باندي
اوس به دا غوټې څوک کړي خلاصي هغه يار اوس څه سو؟

توري تيارې چي د جهل دلته په رڼا بدلېدې
هغه د علم روڼ مشعل او روڼ سهار اوس څه سو؟

د پوهي بهر وهر چا ځني بهره چي وړله
د احمدشاه بابا پچي د کندهار اوس څه سو؟

چي د پامير د غره په شان و عظمت د هغه
هغه پامير ها هندوکش هغه دلدار اوس څه سو؟

سر يې ټيټ نه کړ د نړی ابر قدرتو ته ده
ها د غرور د قافلې ها ستر سالار اوس څه سو؟

د دغه شمعې پتنگان چي په سرو وينو ژاړي
يو بل ته وايي: زموږ تاج او لوړ دستار اوس څه سو؟

نن چي پوهان و شاعران او ليکوالان راټول دي
د هر غمجن د زړه په آه کي وايي حقدار اوس څه سو؟

وماته ووايا ست ای خلکو د لوی خدای په خاطر
زما خواخوږی. زما استاد او زما پلار اوس څه سو؟

۱۳۸۳/۹/۱۱

محمد معصوم هوتک /او کویل - کاناډا

# اه ! استاده

کوکرې سترګي لـه غمـه سـولې ژاړه ژاړه
چشـمې تشـي لـه نمـه سـولې ژاړه ژاړه

دیدې چي مو روښانه وې په دید د ښکلو ښکلو
لچنـي لـه ماتمـه سـولې ژاړه ژاړه

چینې چـي خوټېدلـه ځني فـیض برکتونـه
نـن تشـي لـه کرمـه سـولې ژاړه ژاړه

زینې چي پر ختلو بـه لـوړ پـوړ تـه د پوهني
مفلـوکي لـه پرتمـه سـولې ژاړه ژاړه

دخمې چـي ږغـولې یـې نغمـې د سوي مینـي
نـن وركـي لـه ادمـه سـولې ژاړه ژاړه

هـا ګوتي چي سحر غوټي د تحقیق پرې خلاصېدلې
افسـوس چـي بـې قلمـه سـولې ژاړه ژاړه

هـا لېچـي چـي مزلـه تـې رسـول درانـه بارونـه
بېځواکـه سوې بـې دمـه سـولې ژاړه ژاړه

هـا سترګي چي لیدل یې باریکی، پر تور تمونو
هیهـات وچـي لـه نمـه سـولې ژاړه ژاړه

هـا مېني سولې توري چي پر تېک ستړي ستومان وو
سـپېرې لـه ډېـر المـه سـولې ژاړه ژاړه

هـا هیلـي چـي پـه یـاد یـې پایېـدلو ډېـر کلونـه
نـامرادي لـه ستمه سـولې ژاړه ژاړه

هـا مراندي چـي کـړدی، مو د ادب وه باندي تینګه
پـوده د ګـور لـه یمـه سـولې ژاړه ژاړه

هـا لاري سـوې کـوره چـي بـه بېغمـه بانـدي تللـو
متروکـي لـه صنمه سـولې ژاړه ژاړه

هـا ستني چـي مانـی، مـو د څېـړني پـر تکیـه وه
لړزانـدي سوې بـې زغمـه سـولې ژاړه ژاړه

هـا غونـډې. مجلسـونه. محفلونـه و جـرګې مـو
یـو مـخ خـالي لـه برمـه سـولې ژاړه ژاړه

"**رشاد**" راڅخه بېل مو دروند غم چوک سو پښتانه ته
چغـاري لـه عالمـه سـولې ژاړه ژاړه

ګرېوان چاته کړم څیري ډک زړګی چاته خـالي کړم
"**معصـومه** !" بـې همدمـه سـولې ژاړه ژاړه

نـور ستا لار بـه پالمـه پـر قـدم بـه دي ګـام ږدمـه
پـر سختو پـر پېچومـو بـه دي نـوم را ننګومـه



حيات الله رفيقي

# د پوهاند رشاد په یاد

که سرانو د پر ژړل پر ها رواک
د منزل لاربنود مو پرېواته له واک

چې په زړو کې يې راکړي د عشق شور و
سوم بېخوده په ژړا بېلون يې زور و

په رنګېدو سوه پتنګان د بوه چې مړه سوه
خلاند ستوري شو خوا يو انګروزه سوه

لېري مه ګوره دا زمه سترګي چې ژاړي
دا الهام مي د زړه اخلي "رشاد" غواړي

اوس راغلي يو تپوس ته ځاى يې ورک دى
سپېره غولي راسپړو ورک يې درک دى

د رښې تګمبر هم وينم دلته بنوري
په زړه ښاد په خوله تابناد حالت ته ګوري

يي راغلي داسي غم دى زمه يارانو
که د لر ياست که د بر ياست زمه دوستانو

د سخت زړه فلک ته ګوره څه يې وکړه
زړ مخوړي په سوه څپېړه شنه کړه

د بغيان پر حوربند لو پل ګوزار دى
زموږ د بن ماليار چې ورک له دې ديار دى

دا قسمت له کومه راووست دا استازى د اجل
د رڼا مشال خاموشه تاريک ښکاري دا بورحل

اسمان هم تن په فراق د استاد ژړيږي
ټول فضا بدله ښکاري دوړي خاوري پورته کيږي

دا تابوت د ستر رشاد دى چې ولس ورته تولېږي
په ژړا ژړا ناري سوي دا پوهاند دلته ښخيږي

دى خادم د دې ولس و. زموږ په ځان کې يو نفس و
دى راښند و. هم رشاد و. دا د پوهي يو جرس و

په ځګر د غم ځنګېږو د قسمت څه ګيله من يو
د هجران روبار راغلى. تفاوت څه ګيله من يو

د بېلتون په لاس لوېږو د وصال تمه مو نسته
يو اه د بې وسې سو د هجال تمه مو نسته

دى قصد د خوشبختى و. د ظلمت سره دښمن و
دى حامي د ستر غيرت و. په ښکاره هر بيان و

ده په سل د تاريخ غوټي په قلم يانډي سپړلي
د ادب په سيند لاهو و. مرغلري يې چولي

مړ يې مه بولي ژوندى دى. ټول آثار يې ګواهي کړي
دى طامع د هيچا نه و. ساده ژوند يې شاهدي کړي

لنده دا چې ده بل کړي يو څراغ او يا کلن و
دى نوموتى پوخ شاعر و. د خوږې ژبې چلن و

د ده مينه خانقاه وه مخلصان ورته ورتلله
مهربان پر هر انسان و. بهرنيان ورته راتلله

سپېره ستوري په يې بولو د ادب پر لو لمن
کتابتون د دې ښاغلي موږ ته دى مسمور چمن

په پښتو چې ده ليکلي لر او يا دي ډېر ختلي
قافيه عروض يې دواړه په څو ژبو دي تللي

دى ښوواند و. هم پوهاند و د پوهني سره مينه
ټول ژوند يې وه پوهنه. په هر رګ کې وه دا وينه

دى راسخ پر عقيده و. د اسلام پر لاري ولاړي
د فيضان خلانده ستوري د اکرام پر لاري ولاړي

د ادب د ښکلي ول و. دا ښکلي يې وله ښکاري
دا تشه سول راپاته دکول يې سختي چاري

اخير ستوري د دې لر دى. ستونزي لوري سولي ډېري
د هدفه سولو شاته. د منزله سولو لري

د رښتيا د مرګ زړيږي عالمان ټول فرهنګيان
د ده مثل ستور هم تللي حبيبي غوڅ ندي پوهان

ددې مينه د سورو خوږو. جسد مړ روح يې ژوندى دى
دا د پوهي او تاريخ د غازي هار او غوږ ندى دى

سوحو هښ مي واخله محکي سينه وسپړه په ګلو
لوى ښوواند ناته دا دروحمي دى اوبه کړه په سرو ملو

په انګړ د پوهنتون کې ځاى د پاکي و خپل ځانته
"رفيقي" له څښتن غواړي چې واصل يې کړي جنت ته

# ولي او ځواب راکه ؟!

ای زموږ د ادب آسمانه څه باندي ؟
تا د خپله ځانه څخه بېل کې تل
هغه زموږ وروستی هغه ځلاند ستوری
هغه چي زموږ توري جونګړي يې
پراخ نيت باندي شپه او ورځ ځلا بخښل
هغه چي ستړيا يې حسوله نه
هغه کلک افغان ، هغه زړه ور ليکوال
هغه د غښتلي هوډ څښتن اديب
هغه د اخلاص او رښتينتوب سمبول
نن سو مسافر راڅه !!!
هسک د شفقت رښتونی سيوری يې
تل د پښتنو د سره ليري سو
اوس نو وايه ! څه لرو ؟
څه و موږ ته پاته سول ؟
څنګه دي زموږ لويه هستي خاګاه د خاورو کړه !
دا به کړو په چا جبران ؟
ای زموږ د ادب آسمانه څه باندي ؟
تا د بېلتون تور شامار ته وسپاری ؟
هغه علامه هغه فاضل استاد
ها ځير ک پتنګ ها پر روڼا مين
نن د روڼايي د ښاره ليري سو
هغه ويښ زلمی هغه هڅاند پښتون
تا د تور لحد غيږ کي بيده کړ تل
ای زموږ د ادب آسمانه څه باندي ؟
ولي دي جلا کی تل ؟
ولي دې د يدن کی قيامتي راته ؟
نور خو بې ګناه و بس
صرف يې د خپل خوار هيواد چوپړ واهه
خپل ځپلي قوم ، مايوس ولس ته يې
ويني ـ ويني پيغامونه د سبا راوړل

او :-
ده د بل په لاس د پښتون ماته ملا
خپل د لوړ همت غره ته
داسي تکيه کړې وه !!!
تا به ويل هيڅ غم نسته
نن چي د پوهاند رشاد
ستر ګي د پښتونه څخه ليري سوې او پټې سوې
بيا پر مځکه ولوېدو
اوس نو د اميد ستر ګي د چا پر لوري واړوو ؟
څنګه د پر بې کسه سوو
ای زموږ د ادب آسمانه څه باندي ؟
ولي او جواب راکه ! ؟
خلک په قرنو ـ قرنو ژوندون کوي
موږ چي تر پنځوسو پښه ور واړوو
ژر مو عزرائيل تر ستوني ونيسي
نور سل کلني کي هم جګ سر ګرځي
موږ چي په څلو ښتو کي پښه کښېږدو
ځي ـ راځي رنځونه په جوپو ـ جوپو
يو رنځ د بدن څه په دق وباسو
څو شپې پس نوی رنځ يرغل وکړي
موږ هم لکه خپل د يدني دار هيواد
زوړ غم تر ښه ځي نوی راځي ور ته
نوی بيا په سل پردو کي نغښتی وي
سل د دوستی لاس په محبت راکي
سل د دښمنی لاسونه شاته کړي
سل سرونه مار غوندي راوباسي
سل زهري نښترونه خوله کي پټ کښېږدي
کله چي يې لاس بر سي پر موږ خوارو
داسي کلک ګزار راکړي
زوړ راڅه پر مخ هېر کړي

جاوید کوتوال

## د آسیا ستورو ورته کړلو سلام

د غم سېلاب و ماته مخه وکړه
چي ما ونه لیدلو لمر پرېوته
زه په دې شپه او ورځ پوهېږمه نه
زموږ د سرو لالونو غر پرېوته

ځاروان ویده سو ځاروان نه پاځیږي
زموږ کاروان ته به څوک لاره ښایي
پر دې دارېږمه چي ورک نه سو موږ
خدای خبر څوک به مو چیرته بیایي

د آسیا ستورو ورته کړلو سلام
چي به یې واورېدلو نوم د **رشاد**
د غلیمانو یې کړل زړونه شیري
د توري هر پرهر معلوم د **رشاد**

په دغه لویه لار کي ونه لوېږو
زموږ امسا زموږ امسا ورکه سوه
په یوه تکره وجود کي سپک ختم سو
په یوه تکره وجود کي ساه ورکه سوه

تن پر ما بده ورځ ده بله ورځ ده
په لېمو سرې په وجود توري جامې
دا مي وعده ده له یارانو سره
په تن به نکړم نوري نوري جامې

زموږ سوال دی زموږ لوی تولواک ته
موږ ته راولېږه په څېر د **رشاد**
د ربنګانو قلندر سرکښان
له موږه مه کوې نوم هېر د **رشاد**

اختر محمد رنځور

## د رشاد مینه

د هنر ادب په زړه کي د رشاد مینه پرته ده
د فرهنګ کلتور آثار یې پر مزار بله ډېوه ده
هر طرف ته یې رڼا خپې هر ادیب په منور دی
په جلوه کي یې روښانه دغه بوټه هدیره ده
پښتو ژبي ته ډېر دي رازې رڼي کتابونه
ستر سالار د ادیبانو را پرې ایښې خزانه ده
بې لمبې ښیښه هیڅکله رڼا نه باسي ډیاندي
د استاد پوهه روښانه زموږ پر زړه ژړه لمبه ده
ډېر یې وکړه خدمتونه د پښتو ژبي لپاره
پر پښتو باندي مین. ساتلې ژبې ښښته ده
د استاد په تلو مو زړونه له کوګله وختله
خکه دا د ادب کور کي یو غمجنه واقعه ده
غم به لږ کړو په سینو چي جرئت قرار ونکړي
د رشاد پر پله به پل ږدو د قلم څوکه تېره ده
فرهنګي باغچه مو ږیه له ګلونو خالي مه کړې
ستر مانیار ته پاته سوې له استاده مورته ده
د رشاد په څېر و موږ ته استادان را په نصیب کړې
دا کاروان پر مخ روان کړې دا د پوهي قافله ده
اې پوهاند عبدالشکور رشاده! نوم دي ژوندی وسه
زه رنځور اختر محمد یم زما دوعا درسره مله ده

پوهاند رازقي نریوال / کابل

## ویرنه

یو غر راولوېد هره خوا یې په لړزا راوسته
د فرهنګ زړه کي یې ویرنه او درزا راوسته
یو لوړ چنار، یو ګوړ چنار ؤ ګڼ یې سیوري سیوري
د مرګ سېلۍ په غورځېدلو یې غوغا راوسته
وایي ژوندی دایره المعارف و او ژوندی تاریخ و
سو پاني - پاني اکادمي یې په ژړا راوسته
هو! شپېږم ستوری و، راپرېووت د ادب له هسکه
څه تندریزه واقعه یې پر دنیا راوسته
د استادانو لوی استاد و، نومیالی علامه
د مرګ نارو یې هره خوا په واویلا راوسته
د فرهنګیانو سترګي ډکي دي له سرو سرو ویښو
دې لوی ماتم به ساندو ساندو پښتونخوا راوسته
د مېوې ونه، د ګلونو و سمسوره بوټی
په رنګ و بوی یې خزاني عمر فنا راوسته
د استاد ځای به زباني تش وي نور زموږ په منځ کي
د قلم ژبه پسې له دې یې په دعا راوسته

عبدالاحد نهضتمل

## د پوهاند رشاد په یاد

په مروج د علم و فن وې، د ادب و هنر پلاره!
د افغان اولس شهابه، موږ روان يو ستا پر لاره!
چې پښتو ده اوس روښانه، ستا د علم بركت دی
روڼ مشعل د سباوون وې، دا څرګند يو حقيقت دی
د تهذيب څراغ دې بل كړ، ستا رښتينې صداقت دی
ستا پر لاره چې روان وي د هغو ژوند په عزت دی
ستا ارمان به كړو تر سره، لا و موږ ته هم فرصت دی
ته خو مړ نه يې ژوندی يې، دا ثمر ستا د همت دی
ستا علمي پانګه پرې ايښې، د افغان ولس لپاره
په مروج د علم و فن يې، د ادب او هنر پلاره
د پښتو باغ او بوستان كې، ته بلبل هزارداستان وې
په فنونو د ادب كې، پر عروضو پهلوان وې
فصاحت او بلاغت كې، د بلبل په څېر ګويان وې
په څېړنه د علومو، تل مدام ته سرګردان وې
د سرو زرو پوهېدلې، په رښتيا څېرك انسان وې
هم شاعر وې هم اديب وې، له هر بندو وې بېزاره!
په مروج د علم وفن وې، د ادب او هنر پلاره!
روڼ مشعل د ګلستان وې، پر تا جمع پښتنګان وو
په هر ځای او هر محضر كې، پر تا جمع عالمان وو
لوی استاد د علم و فن وې، پر تا جمع محصلان وو
هم د ننګ وې هم د جنګ وې، پر تا جمع اديبان وو
د ملت په غم غمجن وې، ته روزلي شاګردان وو
په ضد د استعمار وې، ته رټلي فرنګيان وو
ستا مزار دې تل ګلزار وي، تل په ته كړو افتخاره!
په مروج د علم و فن وې، د ادب او هنر پلاره
په څېړنه او تحقيق كې، د علومو ډېر ماهر وې
په ادب كې روح بخښلی، له نور كاره لاس په سر وې
بحر كې د علومو، لوی كان د جواهر وې
كهكشان ته دې نظر و، د فلک پر زړه خنجر وې
ته په امر او په نهي، له هر چا نه ښه خبر وې
ډېر مشفق او مهربان وې، د ادب د بڼ مالياره
په مروج د علم و فن وې، د ادب او هنر پلاره
ستا آثار به مدام ولولو، چې ستا روح به يې شي خوشحاله
په ښوونه د معرفت كې، خبر وې به هر احواله
ښندنه دې زموږ لې په ادب كې تر كماله
د سحر ستورو په شمېر كې، راڅرګند شولې فی الحاله
[illegible] خدای رښتين او حبيبې [illegible]
افغانان به ته وياړي ستا په تل كړې استفاده
نهضتمل خوالشعر ستي، ای زموږ معنوي پلاره!
په مروج د علم و فن وې، د ادب او هنر پلاره!

احمد لودین

## لوی رشاده !!!

تل مو ته اوسې په یاده
زموږ فرهنګ په تا آباده
د استادانو لوی استاده
**لوی رشاده ! لوی رشاده !**

د علمي کور یو ګهیخ وې
د معارف یو ستر دریخ وې
د پښتو ژبې بنیاده
**لوی رشاده ! لوی رشاده !**

چې ستا د مرګ چیغه خپره سوه
پر بدن مو لو لړزه سوه
پوهنتوولي دي زلمیان دي اروابناده
**لوی رشاده ! لوی رشاده !**

ته لایق د صفتو یې
ته لایق د جنتو یې
د خان ملت مو که استاده
**لوی رشاده ! لوی رشاده !**

محمدشریف نانوای

## رشاد صاحب ته !

ځنګه ولاړې ته له موږ څخه **رشاده** !
لو شمله وې د فرهنګ زموږ د هیواده
ته شاعر وې، ته لیکوال وې، ته ادیب وې
فرهنګپال وو تل په تا باندې آباده
لوی پوهاند وې، هم استاد د استادانو
پاک الله تا ته په درکړې و امداده
ته به تل د ملي خاوري خدمتګار وې
هم خادم د خپل فرهنګ وې لوی استاده
زه "محمدشریف" هر وخت لاس په دوعا یم
خدای دې تا کړي د جنت په نعمت ښاده

عبدالحمید کرزی

## د پوهاند رشاد په یاد

تاریکه سوه تروره شپه سوه
ستا د مرگ چي آوازه سوه
ټول وطن په تا روښان و
هر عالم دي قدردان و
څومره پوه ښکلی عالم وې
و هر چاته ښه معلم وې
په فنونو کي استاد وې
په عالي علومو ښاد وې
علامه د انسانیت وې
یو تو‌ته د کرامت وې
د پښتون د سترگو توره !
هیر مو نه یې گرانه وروره !
سلامت دي آخرت سه !
پر ها قبر دي رحمت سه !
علامه دي ښه نښان دی
ستا نوم لوړ پر ټول افغان دی
کندهار ټول په دعا دی
همېشه دا ستا پر خوا دی
خدای دي وبخښه رشاده
په دارینو کي استاده
افتخار دي راپاتېږي
کرزی ستا په نوم نازېږي

۱۱ مرغومی ۱۳۸۳

عبدالهادي ریشا / کراچي

## د پوهاند رشاد په یاد

تا چي خپل ځان ته زموږ ښکلي و بللی
گواکي تا زموږ ښکلی، ښکلی و بللی
آیا ستا په جنتو کي گلان لږ وو
چي له موږ دي ښایسته گل و شکولی
چي یې روح د تنه وخوت زړه مو وخوت
چي پرې ټول وو د دوی هم زړه و ختلی
پاکه ربه تو له ستا یو، ټول دي ستایو
په کامله تولواکي موږ یې منلی
که خوښي راکوې موږ ته که غمونه
تا د ژوند سره ښادي او غم پېیلی
دا د علم چهلچراغ چي دلته بل و
ستا عطا وه پر نړۍ ښه ځلېدلی
نن چي تا بیرته دروغوښت ستا رضا ته
نو جنت په دغه خپل څراغ کړه ښکلی
دا څراغ پر دې دنیا لږ ورځي بل و
خو تاریخ کي ابدي و لگېدلی
په ادب کي پر دې سیمه لو پایه وه
سیمه والو، نړۍ والو دی منلی
که پر مرگ یې اوښکي توی ثُروې تودې کړم
دا انگار به په څو اوښکو نه سي غلی
دغه څوک دی چي په ښو تورو یادېږي؟
دا **عبدالشکور "رشاد"** دی خدای بخښلی

۱۲ لېندی ۱۳۸۳

حیات الله همدرد

## بې پلاره یتیمان

یو گل و په گلانو کي خو واخیستی خزان ژړېږو به موږ ولي نه چي ولاړی په ارمان
د پلار غوندي خدمت یې هر یوه لره و کړی خو نن هغه پلارداره سوه بې پلاره یتیمان
پر مخکه خلک ژاړي په اسمان کي دربهار سو اوښکي یې باران کړې په ژړا لاس و اسمان
خوشحاله سوه دننه په گورو کي مو پوهان خوشال و او که خیال و که حمید و که رحمان
په سترگو کي یې اوښکي او په زړه کي یې دردونه چي چا وي او پېدلی د رشاد د خولې بیان
همدرده ! بل درمل به بیا پیدا سي بې **رشاده؟** چي وایې خلو. دردونه او د زړه یې سي ارمان

مجیب الرحمن محمودي وردګ

## پوهاند رشاد ته

شپږم ستوری د ادب د شته آسمان وې
ای رشاده لکه لمر پر دې جهان وې
ته وې کان د جواهرو او د لعلو
ته مو ذهن ته سنګار وې د پېزوان وې
ته د پوهې خزانه وې سمندر وې
ته سپېڅلی وې رشاده منور وې
ته د رب یوه لورینه وې پر موږه
د ادب د ټولو لارو مو رهبر وې
ستا د پوهې سمندر به تل بهیږي
شنه فصلونه وچ ډاګونه پرې اوبیږي
ډېر ګلونه به سي وا په هر یو بڼ کې
لا تر تابه د هر ګل وږم رسیږي
ته مین وې ته عاشق وې ته دلدار وې
چې پر خپل سپېڅلي دین او پر دیار وې
ستا قلم د حیدري توري په شان و
د وطن مخې ته سپر مرګ د اغیار و
له تا پاته ډېرې تل غوارمه بلې
پښتګان مو پرې مین دي ډلې ډلې
خدای به ډېري تیاري خوني پرې رڼا کړي
خیر رشاده ! که جامې دې کړې بدلې
ته ژوندی یې تر قیامته به دې یاد وي
د پښتو بڼ به دا ستا په آب آباد وي
ستا نیالګي به پر خپل وار ثمر ته رسي
آب و خور یې چې له حوضه د رشاد وي
زموږ بخت دی کومو شنو سترګو خوړلی
چې رشاد نن د مرګي پر لاره تللی
خدایه ته ورته فردوس جنت نصیب کړې
محمودي د علم څلی نړېدلی

علي محمد جلا

## علامه رشاد بابا ته

ته رشاد د هر افغان وې
د هري ژبي ترجمان وې

ډېر نېک خوی شېرین زبان وې
پر هر چا باندي ډېر ګران وې

ته سمبول زموږ د وحدت وې
ځکه ګران پر ټول ملت وې

ته رهبر او رهنما وې
د هر چا د زړه آغا وې
ته عالم او هم عامل وې
په علمي نافع کامل وې
اختیار داره باتقوی وې
د استادانو رهنما وې
پلار د تاریخ ډېر مؤدب
هر طالب موند در څه مطلب
څنګه ګفتار و په فصاحت ستا
شیرین کلام و په بلاغت ستا

علم دي ګوهر قلم دي بر
درسره فیض د غني اکبر

ډېر شاګردان دي سوه پاته
ستا په باب خواست کړي الله ته

وې فیض رسانه روشن ضمیر وې
په ګفت و شنود باندي امیر وې

ګران آغا الفت

## څلوریځه

**رشاد** ژوندی دی **رشاد** نه مري وي به ژوندی تر هغو
چې د چا ګوتو کې قلم وي. څوک کتاب لوستای سي
چې د فرهنګ په کور کې یو ادیب افغان پاته وي
ته به ژوندی یې ستا به نوم ستا به نښان پاته وي

# څو ګړیه د پوهاند رشاد سره

احمد صمیم

کله چې زه په ۱۳۵۶ ش کال په ریشخور کې عسکر وم، نو یوه جمعه زه او زما ورور خیرخانې ته ورغلو، د پوهاند صاحب دروازه مو ورو وټکول، را یې غږ سوه چې راځئ !

لوړ ور وختلو پوهاند صاحب وویل خدای مو راوله، ستړي مسئ، څنګه یاست؟ سه یاست !

سمدستي یې ډوډۍ راوړه، پسله ډوډۍ مو چای خوردن وکی .

پوهاند صاحب موږ ته د نوي شعر په باب وویل چې د نوي شعر مؤسس په ایران کې (نیمایوشیج) او په هند کې (عظمت الله) دی، او اوس یې افغانستان ته هم تاثیرات رارسېدلي دي. لکه (محمود فاراني) او نور . غالباً د اروپا څخه دا نوي استعارات او تشبیهات راغلي دي .

د تصوفو د وحده الوجود په باب یې وویل : چې دا فلسفه له یونان او یا له هندي بودیزم څخه متاثره ده .

ماته یې وویل : چې ته دي یو شعر مېر ووایه، ما د هغه وخت خپل یو ابتدایي شعر ورته ووایه چې آخري بیتونه یې داسې وو چې :

رابعه به سر، سر تور کې
د بخدي په مناره کې
چې الهې ته مو ساته !!!
دا هیواد د پښتنو دی

نو پوهاند صاحب وویل چې دا خو د افغاني پېغلوټو د پاره عار بلل کیږي چې خپل سر دي سر تور کې، او بل یې ماته وویل چې ته هر هر کتاب مه ګوره ! صرف یو کلاس تعقیب که یا تاریخ یا ادب یا جغرافیه، یا تصوف . په یوه علم کې خان سه متخصیص که .

پسله هغه چې راولاړ یدو موږ ته یې وویل : وبخښئ تاسو مو ونه پېژندلاست، ما چې ځان او پلار ور معرفي کړ، ډېر خوشحاله سو، زما د پلار قصې او تعریف یې وکړ . ول دا ستاسې خپل کور دی همېشه راځئ !

د **رشاد** صاحب یو سه خصوصیت دا و چې د کور تر دروازې پورې به د مېلمه سره راووتی او مېلمه به یې رخصت کړ .

**دوهمه لیدنه**

په ۱۳۷۸ ش کې زما د ورور حاجي ظاهر جان کره مېلمانه وو .

الهام صاحب پوښتنه ځنې وکړه چې په سوات نامه کې خوشال خان وایي چې ما د یوسفزو سرونه پر خرو باندې رابار کړي وه نو موږ ولې د ده دغه عمل نه غندو؟

پوهاند صاحب وویل چې داسې یې راواخلې نو امویانو او عباسیان خو هم دواړه مسلمانان وو ولې یې جنګ سره کاوه، داسې ټوله تاریخ له اختلافاتو ډک دی موږ به یې هغه مثبت شیان بیانوو .

خلیق صاحب ته یې د یوه داسې سوال په ځواب کې وویل چې بس تاسې خپلې لیکنې کوئ، ددې غم مه کوئ چې څوک به یې راچاپ کړي یا به یې راچاپ نه کړي .

نور یې هم د شعر او شاعرۍ او د وحده الوجود په باب خبرې وکړې ...ایي چې محمدیار صاحب یې یاداښت اخیستی وي .

پټیال یې د تندي مج کړ په دې خاطر چې د پښتون فردوسي په باب، یې تحقیق کړی و، ماښام سره رخصت سوو .

**دریمه لیدنه**

په ۱۳۷۸ کي په جادهٔ منزلباغ کي د محمدولي ځلمي د ورور کره د روژه مات پر وخت مېلمانه وو، د کور خاوند یو څو بې خونده او بې معنا بیتونه د ( الحاج . . . ) ورته



اروښاد رښاد د کندهار د ارګ ماڼۍ ته د تللو پر مهال په عکس کي کندهار والي انجنیر محمد یوسف پښتون او د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابی هم لیدل کیږي ۱۳۸۳ ل ک)

وویل . پوهاند صاحب وخندل ول : یو څه چای خو راواچوه بیخي یې حلق راتریخ کی .

**څلرمه لیدنه**

په ۱۳۷۹ ش کي چي دوه نفره ملایان هم راسره وو د خیرخانې و کور ته یې ورغلو . ملایانو وویل چي پخوا چندانې مدرسې په افغانستان کي نه وې . نو پوهاند صاحب وویل :

چي پخوا هر مسجد مدرسه وه او طالبانو به درس پکښې وایه .

ما د نوي پښتو مصنوعي لغاتو په اړه ځني وپوښتل چي آیا دا مثبت کار دی که منفي اغېز هم لري؟

پوهاند صاحب وویل چي :

ځیني خلک مړه ژبه ژوندی کوي، ځیني ژوندۍ ژبه مړه کوي، د پښتو د نوو لغاتو جوړښت په باب د هر ځای د

پوهو پښتنو نظر او ګډون شرط دی یوازي د یوه سړي لغات جوړونه د اعتبار قابل نه ده .

تر څو چي څو پوهان په متفق علیه ډول سره نوي لغت منظور نه کړي ولس یې نه سي هضمولای لکه "دوغړی" او "سړوپی" اما چي څو پوهان یې منظور کړي بیا یې نو "ولس" ته هضم اسانه کار دی، لکه :

روغتون پوهنتون، درملتون، زېږنتون او نور . . .

حبیبي صاحب ویل چي محمدګل خان مهمند چي کله (پښتو سیند) لیکی نو د (آب خور) پښتو معنا یې غوښته نو موږ په (اوبه خور) ورمعنا کړ، خو کله چي زه پاکستان ته فراره سوم د "ټانک" په ښار کي په یوه سماوار کي ناست وم . نو څو خلک سره راغونډ وه او ویل یې چي حیواناتو ته مي (پمبی) ډک کړ . ما پوښتنه ځني وکړه چي (پمبی) تاسو څه شي بولئ؟

دوی وویل چي د حیواناتو (اوخور) ته موږ "پمبی" وایو؟

بیا ما د "لدې امله" او په "هکله" په باره کي پوښتنه ځني وکړه، نو پوهاند صاحب وویل :

چي دا اصلاً "لدې لامله" دی، یعني له دې سببه، لدې علته .

نو که ووایو چي لدې لامله، پر ژبه ثقالت راوړي نو یو لام یې حذف سوی دی "لدې امله" څني جوړ سوی دی .

او (په دې هکله) اصلاً "اس کا حق مین" دی چي اردو کلمه ده، پېښوریانو ترجمه کړې ده او وایي چي "د ده په حق کي" یا (په دې حقله) او اوس موږ وایو چي (په دې

بیا ما ورته وویل چي د طارق رشاد په کتاب کي څه داسي درنې جملې په ستر گو کیږي چي ستاسو بوی څني ولاړیږي، یعني الفاظ به یې تاسو مدون کړي او اوډلي وي، پوهاند صاحب وخندل او ویې ویل :

"هو ! څه بد گماني سته !"

طارق رشاد هم ناست و، هغه کتاب یو ښه وړاندیز و، د افغانستان دولت ته چي اصلي نوم یې زما هېر دی .



اروانباد فاضل استاد علامه رشاد بابا په کندهار کي د اصلاحي جرگې غـ ړو او کندهار ښاریانو ته د وینا پر مهال ۱۳۸۳ ل کال د ښاروالۍ تالار

هکله) اوس یې موږ په (په دې باره کي) ترجمه اخلو .

څو کاشکي ما دا څو پوښتني هم څني کړي وای همېشه به مي په یاد وې څو بیا به مي هیري سوې .

۱ . له دې کبله : - چي دا څنگه کلمه ده؟

۲ . "خر لو ډ گلی" (اندوخر) "لگه در گه" "جپ و لپ" "گل گل میري" "خرچلکي" چي دا څنگه کلمې دي، آیا مصدري معناوي دي، آیا انشاءات دي، صفتونه دي، لقبونه دي، فعلونه دي، حرف تکیه کلام دي، اسم فعل دي، څنگه شیان دي؟

نو دا ارمان مي پر زړه پاته سو او حل مي نه کړ .

پوهاند صاحب ویل چي زه د دې طرفدار نه یم، چي شعر دي د شعر لپاره وویل سي . زه دا عمل یو ذهني عیاشي بولم . د شعر څخه باید د وسیلې کار واخستل سي، چي خلک په ویښ سي، خلکو ته حرکت په ور کول سي او یو لوی هڅونکی پیغام باید ولري، یوازي د الفاظو شرنگ او ښکلا په درد نه خوري .

**پنځمه لیدنه** :-

په ۱۳۷۹ ش کي د کندهار مدد خان چوک ته نژدې د حمید په کور کي دننه د پوهاند صاحب سره ملاقات وسو .

د احمدشاه بابا د گنبدي طول، عرض او بیا ترمیم یې د محمد گل خان مهمند پواسطه د فلانکي بناء په ذریعه د دې گنبدي شاوخوا په دې باره کې یې مفصل معلومات ورکړل چې حتی دا گنبده یې یو عجوبه وبلل خو متاسفانه دا بیان یې ما حفظ او ضبط نکړ.

**شپږمه لیدنه** -

په ۱۳۸۲ ش کې په خیرخانه کې د دوی په کور کې چې باقاعده یې خپله کتابخانه راښکاره کړل. ما ورته وویل

پوهاند صاحب کندهار ته په کډه نه راځئ؟

ده وویل:

"خیر وبه گورو".

ما ورته وویل چې:

تاسو بېنوا صاحب، حبیبي صاحب، داوي صاحب، خواخوږي صاحب چې له کندهاره تللي یاست بیا په کډه نه یاست راغلي. سایي چې له کندهار ډېر خفه یاست او په مرگ هم نه ورته راځئ؟

د کاظم خان یو بیت مې ورته وواېه. ډېر یې وخندل، ول شابس! زموږ د حاله سره دې ښه ولگاوه،

بیت داسې و:

**"سر مي هسي په صحبت د تن زهير و**
**چي هر گز ورته راښغي بيا له داره"**

**اوومه لیدنه** -

په ۱۳۸۳ ش په کندهار کې د منډیگک په ماڼۍ کې "کندهار د تاریخ په اوږدو کې" په هغه سیمینار کې ورسره مخامخ سوم. غاړې وتم وې ویل

نه یې راغلی نه معلومېږې؟

ما ول استاده مصروف یم، د سیمینار دوهمه ورځ مې تر غرمې پورې ورسره تېره کړه. بیا مې ونه لید زما ورور حاجي ظاهر جان ته یې ویلي وه چې دی اوس نه راځي؟

شیوا صاحب دي خدای ﷻ وبخښي هغه قصه کول چې:

یو ورځ ما ورته ویل چې پوهاند صاحب ته ولې د کابله حرکت نه کوې؟

پوهاند صاحب وویل چې

"ډېره چې پر ځای پرته وي سنگینه وي".

ما ورته ویل چې

"اوبه چې ځای پر ځای ودرېږي خرابیږي".

پوهاند صاحب وویل:

"اوبه چې حرکت وکړي د لارې خس و خاشاک او خاورې ورسره ملگرې کیږي او پاکې اوبه خړېږي.

ما ورته ویل چې په خارج کې خړې اوبه هم تصفیه کیږي.

پوهاند صاحب ویل چې هغه خو خارج دی او بل دا چې ټولې اوبه یې نه دي تصفیه کړي. کال ۱۳۵۲ ش.

په کومه ورځ چې پوهاند صاحب وفات سو نو د والي صاحب په کوټه کې د ماښام تر لمانځه وروسته والیصحاب د فرهنگیانو سره یوه عاجل میټنگ درلود، موږ ټولو فرهنگپالو والیصاحب ته دری نظره ورکړل:

چې په کندهار کې دې د مشاهیرو په نامه یوه هدیره جوړه سې. چې پوهاند صاحب دې هورې ښخ سي.

۱. د کندهار پوهنتون په انگړ کې.

۲. د باغ پل د یوې غونډۍ پر سر باندې.

۳. د کندهار او بولدک د سړک تر منځ یا د دې سړکانو پر غاړه په یوه احاطه کې.

نو تصمیم داسې ونیول سو چې د پوهاند صاحب جسد د جمعې په ورځ غرمې ته کندهار ته رارسیږي، نو په خرقه شریفه کې به د جمعې لمونځ وکړو، د جنازې لمونځ به پوهاند صاحب ته ورکړو او په کډه به یې مشخصې هدیرې ته یوسو.

د جمعې ورځ وه زه، الهام صاحب د ظاهرشاهي لیسې او شېر لیسې متعلمین او نور ډېر دوستان او مخلصین په خرقه شریفه کې تر یوې بجې منتظر وو، جنازه مو ونه لیدل. بیا یو نفر راغی، چې وروره جنازه یې پر لس نیمي بجې لا تېره کړل. د فرهنگیانو په نظر عمل ونه سو نه پوهېږم چې ولې؟ د تدفین د تصمیم دپاره د والیصاحب په کوټې کې دغه لیکوال موجود وه

۱. طالب صاحب.

۲. پالوالصاحب.

۳. رفیقي صاحب.

۴. همت صاحب.

۵. خلیق صاحب.

۶. یاور صاحب.

۷. بابي صاحب.

۸. پنهان صاحب.

۹. زه

۱۰. روهیال صاحب.

د شېر لیسې استادان، مدیر صاحب سراج الدین خان، حاجي نورالحق خان او غلام محمد خان هم موجود وو.

او د ټولو متفق علیه نظر همداسې وو لکه چې دمخه ذکر سو.

عبدالهادي ریشا / کراچي

# د اروابناد عبدالشکور رشاد په یاد



زما پر زړه چې تابوبره د اروابناد **عبدالشکور رشاد** د مرګ ټک وسو، د زړه مې شرک سو چې رشتیا سي خوږ یې کړم. شنډی مې ولړزېدی، ستونی مې د غریو ډک سو، اوښکې مې تر سترګو راغلې خوځان مې ټینګ کړ، ځان ته مې تسلا ور کړه.

هر غم، غم دی خو د **رشاد** غم بیخي لوی غم دی.

ځکه چې نوموړی د بیخي لوی خدمت څخه د خلکو نامراده ولاړی. ټوله مرادونه یې تر سره نه سوه نو یې مړینه د هر چا لپاره د خپل او پردي لپاره لو او جبران نه کېدونکې غمجنه پېښه ده.

**انا لله و انا الیه راجعون**

خو څوک لږ څه ځانته په دې تسلا او قناعت ور کولای سي چې د ده پاته علمي، ادبي، تاریخي سرمایه چې د هر چا لپاره د خوښۍ سرمایه، د ګټې سرمایه ده ضایع نه سوه. هر ځای په مکتب کې، په پوهنتون کې، په هره کتابخانه کې، په کور کې پاته سوه او د اروابناد مشعلونه یې بل پر ښوول، چې د خلکو لپاره به لاربنودنه وي او د اروابناد روح به په بناد وي. او دا لګېدلي ځراغان به داسي ځراغان وي چې هیڅکله به خاموش نه سي، بلکې رڼا به یې لا پسې تېزیږي او روښانه کیږي.

چې هر څوک مړ سي له هغه څخه میراث پاته کیږي، میراث یې نو یا پیسې وي یا کور وي یا باغ وي یا موټر وي، تجارتونه وي یا . . . بیا نو دا د ده میراث پر میراثخورو تقسیمیږي. د هر چا حق پکښې معلوم وي، هشتکه ځنې بېله سي، د زامنو ونده پکښې ډېره وي، دوې خوندي پر یوه ورور حساب وي.

خو **علامه عبدالشکور رشاد** هم وفات سو، له ده څخه هم میراث پاته سو، مګر د ده میراث باغونه، نه دي، جایداد، نغده او سامان نه دی پاته سوی.

له ده څخه علم، ادبیات، اخلاق حسنه، راستګویي، پېرزوینه، مردم دوستي، نیت بخیري، سخاوت، اخلاص، صداقت، مینه، عدالت خواهي، انصاف، تحقیق تاریخ، اشعار، کتابونه، نېک نوم، خارجي څو ژبې او قلم په میراث کې پاته سول.

د **علامه رشاد** میراث خواره یوازي د ده کورنۍ، خپلوان او افغانان نه دي بلکې ټول عالم بشریت، ټول نړیوال د ده په میراث کې ګډ شریک دي، او حق پکښې لري. خو اصلي میراث خور یې هغه څوک دی چې د ده ښه خویونه عملي کړي. د علامه اروابناد میراث داسي هم نه دی چې لږ دی، خورا ډېري خزانې دي چې تمام نه لري. د وېش نه دی چې ودي وېشل سي، بلکې اخیستل، وړل یې د هر چا په خپله خوښه دي. هر څونه چې وړلای سي اختیار لري، په ډېر وړلو سره د اروابناد روح لا ښادیږي او خلک په آبادیږي.

نو خوشبخت هغه څوک دی چې ډېر یې یووړه، چې ډېر څه وړي بل څه نه وړي. علم ـ اخلاق حسنه، صداقت، مینه، نیت بخیري، راستي، عدالت، پېرزوینه او قلم به واخلي، دا د علامه میراث دی نو وړل یې اختیاري دي او د اروابناد خزانې د تمامه وتلي دي. آفرین پر هغه چا چې ډېر یې یووړه، زه چې په دې وخت کې د یو بل کتاب په لیکلو بوخت وم چې د اروابناد د مرګ خبر مې واروېده نو هغه کتاب مې کټ کې قلم مې د **علامه رشاد** وخواته راکاږ کې د ده په باره کې غواړم یو څه ولیکم.

مگر چيري ده هغه ليکنه چي يا دي زه په قانع سم يا د ده روح په ښاد کړم يا دي بل څوک ارزش ور کړي؟ خو پر ځان يې لازم بولم چي د مرحوم په باره کي خداى و هست يو څه وليکم او پر هر صاحب قلم باندي د **علامه رشاد** دا پور بولم چي د ده لپاره د ده په باره کي يو څه وليکي. ولي چي استاد هر چاته خپل ګټور آثار پرې ايښي دي، ډېر څه يې خلکو ته ليکلي دي بايد هغه دين يې ادا سي.

زه د **عبدالشکور رشاد** هغه وختونه نه يادوم کم چي ده پر دې رغنه، پر جنجاله د فتنو ډکه نړۍ کي ستر ګي ولغړولې، په ناخوالو کي راپورته سو رالوى سو، را روان سو، په ښه و بدو پوه سو، د کوره، کوڅې، د کوڅې بازار ته، د بازاره د کندهار ښار ته راووت.

زه يې له دغو وختو يادونه کوم، کوم چي **رشاد** ليکوال سو، شاعر سو، سياستدان سو په کابل کي **رشاد** سو، په افغانستان کي **رشاد**، پر سيمه د **رشاد** نوم راوڅرخېدى، د نړۍ په فرهنګي ادبي محافلو کي **رشاد** وځلېدى، په تاريخي، ادبي تاليفاتو يې کتابخانې ډکي سوې، استاد سو، شاګردان يې وروزل، شاګردان يې معلمان سول، زه يې دا وخت يادوم چي **رشاد** پوهاند سو، اکاډميسين سو، علامه سو، بالآخره **رشاد** د نوبل جايزې لپاره پيشنهاد سو. څکه چي د علامه نوره کامله سوانح، پېژند ګلوي نورو تاريخ پوهانو، ليکوالانو ډېري ليکلي او خپرې سوي دي لا به يې وليکي.

زما ناتوانه قلم دونه توان نه لري، ژبه به يې کره سي چي د دونه درانه عالم، تاريخپوه د کاملي حقيقي پېژندګلوي درنه ليکنه دي په وسي، خو په ښو يادونه يې يو وار بيا پر ځان او د قلم پر خاوندان فرض ګڼم، نو زه هم غواړم چي ځان د ده په يادونه کي شريک کړم.

دا زما صرف يو اشتراک دى، يو يادول دي، که نه زه پوهېږم چي د ده په باره کي به د ليکوالانو، تاريخپوهانو له خوا ډېري نوشتې وسي، پنډ ضخيم کتابونه به وليکل سي، محققين به د ده په باره کي لوى باب خلاص کي.



کنفرانسونه، سيمينارونه او محافل به جوړ سي يادونه به يې تازه ساتل کيږي.

ښه نو **اروا ښاد رشاد** څه درلودل چي پر خلکو دونه ګران و؟ **رشاد** نور هر څه چي درلودل خو خلک پر ګران وو، لوړ خيالات يې درلودل، د وطن سره، د انسانانو سره يې مينه درلودل، د افغانانو او ټوله بشر ګټي ښېګڼې، ترقي او پېشرفت يې غوښتى، پر نړۍ يې د افغانانو ښه نوم و نښان، عزت غوښت، دې د ازل خوارانو ته يې ډوډۍ، مړتيا، تعليم، ښه روزنه، تحصيل، د ژوند ښې چاري غوښتې، په غوښتنه کي يې چل نه و. دا د اخلاص او صداقت غوښتنه يې يوازي افغانانو ته نه وه، بلکي دا غوښتنه په فراخ نيت د بشري جامعې لپاره هم وه.

دا لوړه آرزو يې درلودل چي په نړۍ کي انسانيت وي، عدل حاکم وي، انصاف، حق رهنما وي، مړتيا وي، ظلم نه وي، د سولي او ورورولي ژوند وي، څکه نو پر خلکو ګران و. مګر **علامه رشاد** د دې غوښتنو د پوره کولو لپاره، د دې نېکو خيالاتو د پلي کولو لپاره بله وسيله او چاره نه درلوده بېله دې يوه قلم، اخلاص او پاک نيت څخه.

**علامه رشاد** ښه پوهېدى چي افغاني جامعه هم د ودي هم د پېشرفت ټول وسايل لري، هم يې برابرولاى سي، خو

په دې هم پوهېدي چې د دوی د دسترخوان ټکله او نوره هستي بل څوک امله کوي څغلوي يې .

دی په دې هم پوهېدی چې دښمنان نه غواړي چې خلک دي وروزل سي، تعليم يافته، تحصيل کرده دي سي، ولي که خلک په خپلو حقوقو پوه سول بيا قوت تشکيلوي او د قوت څخه دښمن حملي نسي وهلای نو خلک يې لومړی ناپوه ساتل سره دسمنان کول يې بيا يې نو خپل شوم پلانونه عملي کول .

په دې وخت کي نو رشاد په دې يوه قلم سره بل څه کولای سوای؟ بېله دې څخه چې خلک راويښ کړي، پوه يې کي، غوړونه يې خلاص کي، د خلکو په اذهانو کي د پوهي څراغان ولګوي، چي دا کار يې تر يوه حده تر سره هم کړی .

اروابناد علامه رشاد چي تقريباً (۱۰۰) کتابونه تصنيف، تاليف او ترجمه کړي دي، دا مسخره خبره نه ده، په دې کتابو کي ۱۰۰۰ مخه کتاب، ۵۰۰ مخه کتاب، ۲۰۰ مخه کتاب او ۴۰ مخه کتابونه هم سته .

که موږ ټوله پرله پکښي کي دا سل کتابونه ۲۰۰ مخيځ وبولو نو ټوله شل زره مخونه کيږي، چي شل زره مخونه په قلم ليکل په ډېر غور او دقت ليکل، تحقيق پر کول خواري په کښلې او تصنيف کول په خوله ياديږي .

د رشاد دا حوصله دونه دماغي انرژي مصوفول، دونه وخت پر تېرول، بيا نو نه روځ، نه هفته، نه مياشت، نه کال تقريباً ۶۰ کاله مسلسل مطالعه، نوشته، تحقيق او په دې نوشتو کي ډوب دا د يوه عادي شخص کار نه دی دا د يوه نابغه شخص کار بولم . هر څوک داسي نه سي کولای . که بل چاته ووايې چه ته دا کار وکړه د هلمند اوبه به په راوړي .

شپېته کاله په خوله ياديږي چي څوک قلم د ګوتو وانه چوي، کتاب له مخه ليري نه کړي فکر بېله تحقيقه بلې خواته وانه ړوي .

علامه رشاد چي به د چا سره صحبت کاوه هغه علمي تحقيق. د سووني خبري وې. بې در که نه رغېدی يا به يې چاته په خپلو خبرو کي په ډېر مهارت څه ورښوول او يا به يې د مقابل طرف د خبرو څخه اخيسته کول. څه به يې ځني پلټل او زده کول، بيا به يې نورو ته ورښوول د هر چا نظر يې معلوماوه، د خبرو څخه يې ګټه اخستلای سوای .

د اروابناد رشاد پر جنازه او قبر خوا، اډېر خلک راټول وه. پوازي د ده پر قبر د کندهار عام خلک نه وه حاضر، بلکي د کابل څخه هم د جلال آباد، پکتيا، مزار، سرحد، پېښور خلک ورسره راغلي وو، او د کوټي، هرات، فراه، هلمند، ميوند، زابل، دهراوت څخه هم د ده ارادتمندان ورته راغلي وو .

ودې خلکو ته چا نه وه ويلي چي درځئ د اروابناد عبدالشکور رشاد هديرې ته درځئ چي پاته نه سئ . بلکي ټوله په خپل شوق د رشاد سره په مينه په خپله علاقه او اراده راغلي وو .

د هر څونه ليري ځايو که راغلي هم وه چا سفر خرڅ، مصرف، کرايه او ځای هم نه وو برابر کړي، دوی ټوله په خپل مصرف خپل اخلاص د رشاد سره د ميني په خاطر راغلي وو .

د رشاد پر جنازه دا دونه مخلوق راټولېدل د رشاد د کالبد او جسد د ليدو او يا ځان ښکاره کولو لپاره نه وو راټول سوي، دا دونه عالم د استاد د انسانيت، شرافت، د ده نيکو صالحو پاکو اخلاقو رابللي او راوستلي وو، دوی د ده د علم د څراغ پر رڼا راټول وو، پر ځان يې سترياوي، تکليفونه ګاللي وو، خپل کورونه يې پرې ايښي وو، ځان يې پر جنازه حاضر کړی و .

دلته نو بله خبره نه پاته کيږي خاص د ده فاضل توب، د ده انساني کړو وړو، د ده ښېګڼو، ښو خويو دوی مجبوره کړي وه چي و قبر ته يې ځانونه راورسوي، د يوه رئيس جمهور پر جنازه هم ډېر خلک وي، وزيران وي غټان وي خو هغه سياست دی، د بل هدايت دی، بل مطلب دی مادي ګټي دي او بس !

يوه خبره دلته د يادولو وړ بولم هغه دا ده چي د دا ډول لوړو عالمانو پوهانو لکه اروابناد رشاد صاحب چي دی، دغه رنګه د نورو محققينو، شاعرانو، مؤلفينو پر جامعه حق سته چي دوی ښه وساتي، ضروريات يې ورپوره کي .

مګر داسي کارونه د جامعې خلک په انفرادي توګه نه سي کولای نو پر حکومتو لازمه ده چي د داسي اشخاصو د ژوند ټوله پوراينه وکي .

مثلاً کتابونه ورچاپ کي، ښه کور ورکي، موټر ورکي، د سفرو لپاره مصارفات ورکي، د صحت غم يې وخوري، د مېلمنو لپاره پيسي ورته بيلي کي و غيره . چي د پيسو د پيدا کېدو لپاره بل ځای مصرف نه وي او نه اړ وي ټول احتياجات يې پوره وي .

يوازي په وچه ننخوا د داسي محققينو عالمانو د ژوند چاري نه پوره کيږي، بيا نو چي عيالداره هم وي .

ډېره د افسوس خبره ده چي د يوه رئيس، معين، وزير په سر کي درد سي، په هغه دم پاسپورټ، د طيارې ټکټ بيا برابر سي خارج ته ولاړ سي مگر د عالمانو، پوهانو، شاعرانو په رنځ ځوک خبر هم نه وي .

په نورو دولتو کي داسي لوړ اشخاص د دولت د خوا نازول کيږي. توجه او پام ورته کيږي، د تفريح لپاره يې استوي نورو دولتو ته، کنفرانسو ته، مجلسو ته، تحقيقاتو ته لېږي مطلب د حکومتو د خوا کامل کومک ورسره کيږي او لازمي اسانتياوي ورته برابري وي، مگر په افغانستان کي له دې راز لوړو اشخاصو سره ډيري بې توجهي او بې پروايي کيږي .

**علامه رشاد** شايي ډيرو داسي تحقيقاتو ته اړ و، چي هغه د حکومت په مرسته تر سره کېدلای سوای. د علامه د بشره پوره نه وه چي په خپله دا کار وکي باید زمينه سازي يې حکومت وکي، په خارجي علمي کنفرانسونو، څېړنو کي د استاد شموليت به د افغانانو نوم نور هم لوړ کړی وای د افغانانو لپاره به نور افتخار وای، خو تېرو حکومتو چي دا کار نه دی کړی، بې انصافي او له پوهانو عالمانو سره يې بې تفاوتي بولم .

اوس خو **اروابناد رشاد** ولاړ، د ښه نېک نامه سره ولاړ، نېک بخته سړی و، ځوک يې نه وه آزار کړي، د چا سره يې بد نه وه کړي، برعکس که يې ښه د وسه کېدل ځان يې نه و سپمولی. خو افسوس چي د افغانانو فلاکت، بدي روځي يې وليدلې، د هغو څخه جگر خون ولاړ، هغه لويي لوړي آرزوگاني چي ده د افغانانو حتی د عالم بشريت لپاره درلودې چي هغه انسانيت، عدالت، سوله، وروري او انصاف وه. له دې ټولو خالي لاس نامراده ولاړ، دې لوړ مقصد ته په ژوند کي نه ورسېدی اوس دې په دې نازولي نېکخواه مړي سره مړي نازېږي چي خدای يې جنت ته ورولي بيا دې نو جنتيان په هوسيږي . علامه نېک، صالح، پر دوستي ټينگ، قابل اعتماد، د ډيري مطالعې خاوند، سياستپوه، پر خلکو او وطن مين سړی، نيت بخيره، فاضل او کامل انسان و .

علامه د دونه عظيمي حوصلې، لوی همت او صبر ښتن و چي د افغانستان د ۲۶ کلو په گړ بړ. ناخوالو کي ځای پر ځای په خپل کور کي په يوه کوچنوټې تنگه کوټه کي د يوه کوچني مېز و شاته د کتابو د ډېوالو په مېانځ کي ناست و، قلم يې د گوتو شوه نکړ .

په دې وخت کي ډاکټران، انجنيران، د قلم خاوندان، شاعران، سياسيون. وزيران، سوداگران، حزبيان، مامورين او بعضي نور خارج ته ولاړه وطن يې پر ښود .



اروابناد رشاد د کندهار د ارگ ماڼۍ څخه د ليدني پر مهال په عکس کي کندهار والي انجنير محمد يوسف پښتون او د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابی هم ليدل کيږي ۱۳۸۳ ل کال

**اروابناد علامه رشاد** ته چي تر هر چا زمينه برابره وه ده دا کار ونکړ .

**علامه** د نوشتې د مېز بغل پرې نښود ورته جوغېدلی و، نوشته او نوشته، مطالعه او مطالعه .

**علامه** حزبيانو ته هم قلم، کتاب د سولي خبري او بيانيې ورکولې، مجاهدينو ته يې هم قلم، کتاب او د سولي پيشکش کاوه، د ورور وژني يې راگرځول د ه د ورور وژني څخه نفرت درلود آشتي ته يې افغانان او نړيوال رابلل .

د بېگانگانو مداخله يې په دې هيواد کي خلاف انسانيت او خلاف منشور ملل متحد بلل، په افغانستان او نړۍ کي چي به څه بده بېرانه پېښېدله ده خپل نېک نيت ښکاره کاوه .

ټوله مخلوقات د خدای پيدا دي، فنا کوونکي يې هم خالق دی، انبياء هم پيدا کوي، عالمان او نور نازولي لويان هم خالق پيدا کوي، بيا يې ورغواړي هم هغه خدای .

نو **عبدالشکور رشاد** يې هم يو فاضل، کامل انسان پيدا کړی او بير ته يې ور وغوښت .

عبدالباقي پوپل

# لومړی او وروستی روژه مات

ای کاش !!!

د قلم په څوکه کي مي دومره توان وای چي د **علامه پوهاند عبدالشکور رشاد بابا** په هکله مي ټول هغه صفات ليکلای سوای چي د ده په وجود کي وه .

بې له کومه شکه دا به د يو شخص له توانه وتلې خبره وي چي د **علامه رشاد بابا** د علميت، تاريخپوهني، ادبپوهني، ژبپوهني، ټولنپوهني او تېرپوهني په هکله مفصل معلومات وليکي، د ده د علم هره څانګه بېل بېل کتابونه غواړي چي باندي وليکل سي او قلم به همېش په ليکلو بوخت وي .

زه يقين لرم، هر هغه شخص چي د **علامه رشاد بابا** سره يې ليدلي وي او يوه يا دوې خبري يې ترې اورېدلي وي نو اوس به د حيرت په نړۍ کي قلم په لاس او چرت به وهي چي د کومه ځايه يې راپيل کړم؟



کوم اوصاف يې وليکم؟ . . .

د ده ښايسته خبره، د مېلمه پالني هغه لوړ مخلصانه برخورد، خواږه الفاظ د علميت نه برعلاوه د کمپيوټر تر حافظې قوي حافظه، انساني لوړ شخصيت او د شکري نه هم خوږې خبري .

ای کاش !!! د هغوی سره مي ډېر پخوا پېژندلي وای. او ای کاش !!! د ده د شاګردانو څخه وای. او ای کاش !!! د ده سره نژدې اوسېدلای . خو سربېره پر دې ځان ډېر خوشبخت انسان بولم چي د هغوی سره همصحبت سوی يم .

غواړم چي د هُغه د خاطرو څخه چي زما په ذهن کي به تل پاته وي يوه لنډه خو وروستۍ خاطره وليکم :

د روژې لومړۍ ورځ وه، او سبا مي نيت کړی و چي بير ته کندهار ته ولاړ سم. څکه رسمي سفر مي پای ته

رسېدلی و او لکه همېش د **علامه رشاد** زيارت ته مي نيت وکړ، زه همېش د ماخيگر له خوا د **علامه رشاد بابا** کور ته ورتلم، او دا ځلي مي همهغسي وکړل . په لاره کښي مي چرت واهه چي خدای دي وکړي چي صحت يې ښه وي، ځکه تېره مياشت يو څه په تکليف و، او زوی يې هم ښايي له همدې کبله راغلی وي، په دغه چرتونو کښي روان وم چي د **استاد** کور ته راورسېدم، هغه مقدس ځای چي هيڅکله خالي لاس نه يم ځني راولاړ سوی . په هره ناسته کي مي ډېر څه ځني زده کړي وه، دروازه مي ټک ټک کړه لمسي يې راووت، او د همېش په ډول يې پورته رهنمايي کړم، هغه مېلمستون چي د ټولو کور، يو پوهنتون او دعلم او فضيلت دربار و، او د **علامه رشاد بابا** د ناستي ځای و . دی پر خپل ځای ناست و، تکان يې وخوړ او غوښتل يې راولاړ سي، خو ما د تعظيم سر کښته او لاسونه مي ور مچ کړل او ورته مي ويل چي تکليف مه کوئ استاده مهرباني وکئ .

کړکۍ ته څرمه ورته کښېنستم او د روغبړ وروسته يې د همېش په شان د موسکا څخه په ډکه څېره راته وويل :

په کندهار کي څه کيسې دي او اضافه يې کړل څنګه دی علمي مرکز مو؟ د هوډ مجله مو چيري رسولې ده؟ خوانان په علمي کارو اخته دي؟ او يو څو نوري پوښتني يې هم وکړې . . .

نه پوهېږم ولي مي نه غوښتل دا ځل ډېري خبري وکړم، که څه هم دا لومړی وار نه و، چي دا سپين ستر گي مي کوله ځکه چي سرېېره پر هغه چي پر دېوال باندي په غټو تورو ليکل سوي وه چي : "د استاد صحت ښه نه دی د ډېرو خبرو څخه ډډه وکړئ !" خو ما تل غوښتل چي استاد گويا اوسي او زه اورېدونکی اوسم . د لنډو ځوابونو په ورکولو سره مي خبري لنډي کړې، او بيا مي پوښتنو ته ادامه ورکړه، هره خبره يې د مرغلرو په شان صفا او خوږه، فصاحت او بلاغت پکښي مراعات سوي، متوازن بړغ چي د زړه غوږونو ته رسېدی، او هره جمله يې جلا جلا ويل . د مضمون اصلي مفهوم او شيره يې په ډېرو ساده الفاظو او لنډو جملو کښي بيانول . د لوړي حوصلې خاوند او د پوهي ډک سمندر . . . غوښتل مي چي ناست اوسم او واورم او بيا واورم، خو د ساعت ثانيه گرد ډېر ظلم کاوه ډېر په سرعت په حرکت کښي و، دوولس دقيقې روژه مات ته پاته سوې، او ما وويل : **استاده** ! زه به نو ولاړ سم .

**علامه رشاد بابا** راته موسکی سو او ويې ويل . په کور کښي سوروا باندي ده. يو گيلاس اوبه، به ور زياتي کړو روژه مات به پري وکړو او بيا ستا خوښه ده . لومړی روژه مات دی يو څه به يې برابر کړي وي، سوروا خو سته نه کميږي .

لومړي روژه مات ته تياری نيول کېده، وروسته ستر خوان هوار سو، ډېر خواږه شربت راغلل، خرما هم راورسېده په خير واخته وو چي اذان مو تر غوږ سو . جل جلاله يې وويل او روژه مات وسو، تر لمانځه وروسته ستر خوان ته نژدې سولو او په خوړلو مو پيل وکړ، او په ډېره مزه مي ډوډۍ وخوړه ځکه لومړی روژه وه او لومړی روژه مات، خو زه نه پوهېدم چي دا مي د **علامه رشاد بابا** سره وروستی روژه مات هم دی . د ځينو علمي کارو په هکله مو يو څو خبري هم وکړې، په دغو خبرو کښي وو چي د کوره د تليفون زنګ راورسېد او پوښتنه يې وکړه چي چيري يې، خيرت دی؟ ما ډاډ ورکړ چي د **علامه رشاد بابا** په کور کښي يم او در روانېږم، يو څو دقيقې نور هم منتظر سوم، چای مي هم وخوړي او خدای په اماني مو وکړه . په زړه کښي مي يو څه راوگرځېده او زړه مي غوښته چي ډېر کښېنم . خو د وخت تقاضا نه وه د راولاړېدو پر مهال د **علامه رشاد بابا** ستر گو، سر و صورت او د کلام جوړښتونو ته ډېر خير سوم، الماري ته چي د ده قلمي او نور آثار پراته وه متوجه سوم، د ده ليک جلا سبک و او په خير مي ورته کتل، او په زړه کښي مي ويل چي دا هم دغه خط دی چي په لومړي ځل يې راته د کورس د پرانيستو مبارکي ليکلې وه . د ځان په خوځېدو مي پيل وکړ او رخصت مي ځني واخيست .

د **علامه رشاد بابا** له کور څخه په پښو را روان سوم، هوا ډېره ښه وه خو ډېره تياره وه، ځکه بريښنا نه وه، سړکان هم خالي وو، را روان وم تر څو د ټکسي تر اډې راورسېدم، ټکسي مي ونيوی او د ټکسي د شا په سيټ کښي کښېنستم .

د خانه سره مي چرت واهه چي ای کاش !!! د **استاد** سره گاونډی وای، او تل به د ده د خبرو او علم څخه مي ډېره گټه پورته کولای . بيا به چرت بلي خواته ولاړ او وبه ېېرېدم، که خدای ناخواسته په **استاد** يو څه وسي، نو موږ به څه کوو ؟ او که کابل ته راغلم لکه يتيم د چا ر دروازه به ټکوم ؟ او داسي نور . . .

بيا به مي ويل دا د مرگ خبري پرېږده د **استاد** صحت حتی تر پخوا هم ښه دی . هيڅ ستونزه نسته، په دغه چرت کښي وم چي ډرېور بړغ

پاته په (۹۴) مخ کي

# د افـــــکارو تجـــــلی یې نه ورکـــیږي
# د چا زړه کي چي څـــــراغ د علم بل وي
# په تور تم کي دي هـــغه سړی وي وړانـــدي
# چي یې لاس کـي د عرفان ښایسته مشعل وي

د **پوهاند علامه رشاد بابا** په یادولو سره داسي فکر کوم چي ما د کوم لوی سمندر نوم واخیست . هغه سمندر چي د علم، ادب، تاریخ، ژبپوهني او داسي نورو علمو د بېلابېلو برخو تري مینان د معلوماتو په راټولولو باندي اوبه کیږي . هغه سمندر چي د اوسني خاکي کرې تر وروستي کړ په به یې نوم د لمر او سپوږمۍ په شان د علم او فضیلت پر آسمان ځلیږي. او ځوانان به د دغه لمر په رڼا کي د علم او پوهي و هسکي څوکي ته ځانونه رسوي .

هو ! داد **پوهاند علامه رشاد بابا** یاد، دی چي موږ ژړوي. هغوی اوس جسماً زموږ سره وجود نه لري خو په مانا کي زموږ د سر د پاسه همېشه سیوري راباندي لري . د هغوی لیکني، آثار ټول په معنوي توګه د هغوی د شتوالي زېری راکوي .

**پوهاند علامه رشاد بابا** د ډېر ښه فکر او ښه نظر څښتن و. د دوی هره خبره او هر عمل یې موږ ته زده کړه وه او یا په بل عبارت زموږ ځوانانو لپاره یو ژوندی پوهنتون و .

د دوی له هري ناستي سره سړي یو څه زده کړه تر لاسه کولای سوای، د دوی حوصله مندي او د خبرو کولو پر وخت د دوی فصاحت مخاطب لوري ته دونده په زړه پوري تمامېده چي نورو کارونو ته به هیڅ د چا زړه نه ښه کېدی تر سره یې کړي . صفات یې ډېر دي چي زما ناتوانه قلم یې د لیکلو جوګه نه دی . داسي څوک دي نه وي چي د **استاد** سره یې لیدلي وي او د هغوی څخه دي ښه خاطره ونه لري . یو له نیکو او ښو خاطرو څخه چي زه یې د ارواښاد **علامه رشاد بابا** د ژوندانه څخه لرم هغه دا ده چي

د ۱۳۸۳ لمریز کال د غبرګولي د میاشتي پر ۲۷مه او ۲۸ مه باندي د کندهار په اتل او تاریخي ښار، د منډیګک په ماڼۍ کي د "کندهار د تاریخ په اوږدو کي" تر سرلیک لاندي یوه په زړه پوري څېړنغونډه جوړه سوې وه .

نوموړي څېړنغونډي ته د هیواد د دباندي او دننه څخه ګڼ شمېر لیکوالان، ادیبان، تاریخپوهان، ژبپوهان او زیات شمېر د علم او ادب مینه وال رابلل سوي وه .

نوموړي څېړنغونډي ته ارواښاد **پوهاند علامه رشاد بابا** هم رابلل سوی و چي نوموړي څېړنغونډي ته یې علمي او فرهنګي روح ورباخښه .

د لومړي ورځي په ماپښین کله چي د غونډي لومړی څېړنیزه برخه پیل سوه نو مشري یې د ارواښاد **علامه رشاد بابا** پر غاړه وه .

ګډونکونکو پوهانو او لیکوالانو د اجندا له مخي هر یوه په خپل وار سره خپله مقاله لوستله، د ځینو مقالو د لا روښانه کېدو په خاطر علامه رشاد بابا هم خپل د محتوا څخه ډک معلومات پر اضافه کول او ګډونکوونکو به له هغه څخه په زیاته پیمانه ګټه اخیسته .

په دې لړ کي یو تن مقاله لوستونکي د خپلي مقالې د لوستلو پر وخت د هیواد د ملي قاید حاجي میرویس خان نیکه لـه نامــه سـره هوتـک او د افغانســتان د بنسـټ ایښودونکي لوي احمدشاه بابا د نامه سره د دراني کلمې ذکر کړې، د مقالي تر لوستلو وروسته ارواښاد **پوهاند علامه رشاد بابا** د مقاله لوستونکي څخه د منني په یادولو سره په ډېره عالمانه، نرمه او د لطافت څخه په ډکه لهجه باندي

وفرمایل چې : محترمو درنو حاضرینو زما یو نظر دی هیله مند یم چې راسره وایې ورځ .

هغه دا چې حاجي میرویس خان نیکه او احمدشاه بابا زموږ ملي مشران دي . دوی زموږ د ټول هیواد ویاړلي شخصیتونه دي . چې هر افغان به په دوی باندي ویاړي ، نو که چیري موږ د حاجي میرویس خان نیکه د نامه سره هوتک او یا د احمدشاه بابا د نامه سره درانی یادوو ، په حقیقت کي موږ دوی د یو قوم او یوې قبیلې ته منسوبوو . په داسي حال کي چې دوی ټول افغانستان ته منسوب دي . که موږ دوی و یو قوم ته منسوب کړو نو خدای مکړه چې زموږ نور قومونه او ملیتونه به څه ناڅه راخخه لري سي . نو زما نظر دا دی او هیله مي هم دا ده چې نور زموږ له دغو مشرانو سره داسي کلمې ونه کارول سي . ځکه دوی اوس تر قومي جوړښت او ملیتي جوړښت راوتلي او دوی زموږ ملي څېرې دي .

د **پوهاند علامه رشاد بابا** پورتنی وړاندیز په ډېر هر کلي سره ومنل سو .

که موږ لږ څه پورته موضوع ته ځیر سو نو دا به موږ ته جوته سي چې **پوهاند علامه رشاد بابا** رح په علمي او فرهنګي خدمتونو برسېره څومره د افغانانو و ملي یووالي ته متوجه و . د دوی هر نظر دې هیواد ته جوړونکی نظر و . خدای ج دې موږ ته توفیق راکړي تر څو د خپلو دغسي مشرانو په نصایحو باندي عمل وکړو او د هغه په رڼا کي خپل راتلونکي ته لاره ومومو .

**پادشاهانو که قصرونه کــــړل آباد**
**تا د عشق د مـــــملکت ایښی بنیاد**
**عشق و ستا پیر و پیشوا صحیح استاد**
**درلوده دي په عشق څه ښه اعــتقاد**



## اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور . . .

موږ دې استادي ورته ستر شهرت ورکړی دی" .

**اکاډیمسین پوهاند رشاد** د څلورو زامنو او پینځو لوڼو پلار دی . لومړی زوی یې ډاکټر خالد رشاد چې د جراحي متخصص دی او د جاپان د موتوشیمادا په ښار کي د یو کلینیک او پالنځي لرونکی دی . دویم زوی (زه) طارق رشاد په هالند کي اوسېږم . دریم زوی یې ماستر شېرشاه رشاد چې په جاپان کي اوسي ، څلورم زوی یې احمدشاه رشاد چې د بشري علومو او ادبیاتو د پوهنځي پښتو څانګه یې ویلې او اوس د امریکا د متحده ایالاتو د لاس انجلس په ښار کي اوسي . کشره لور یې ډاکټره مرغلره هم له خپلي کورنی سره په جاپان کي اوسي . خپله استاد ، مېرمن او څلور لوڼي یې د خپلو کورنیو سره په افغانستان کي ول ، په افغانستان کې دوې لوڼي کو کو رشاد او نجیبه رشاد هم شعر او شاعري کوي . چې شعرونه یې کله کله په مطبوعاتو کي خپرېږي .

**اکاډیمسین پوهاند رشاد** د روان لمریز کال د ۱۳۸۳ د لېندۍ د میاشتي پر ۱۱ مه نېټه د چارشنبې په ورځ د ورځي د یو نیمې بجې په شاوخوا کي د ۸۳ کلونو په عمر په کابل کي له دې پاني دنیا څخه د تل لپاره ستر ګي پټي کړې .

**انا لله و انا الیه راجعون**

**اروا یې ښاده او پر ګور یې تل رڼا**

## د اروابناد اکاډمیسین پوهاند علامه رشاد د آثارو سره باید . . .

د دې ټولو نیمګړ تیاوو سره سره د ځوان لیکوال و شاعر استاد لال پاچا ازمون علمي و فرهنګي هلې ځلې د **علامه پوهاند رشاد** پر ژوندانه د هغه د لمانځلو علمي څېړنیز سیمینار جوړول ، د هغې ستري هستی درنه فاتحه اخیستل او همدا اوس اوس د هغې ستري هستی د ځلوبښتی لمانځلو په ویاړ د هیواد په سطحه د علمي څېړنیز سیمینار تابیا د دې غوښتنه کوي چې استاد ازمون هم ونازول او ولمانځل سي .

نوري علمي او فرهنګي بریاوي یې غواړو
کور یې ودان او اوږد عمر یې په برخه



## لومړی او وروستی . . .

راباندي وکی : یادر استګاه قلعه فتح الله خو همیست ، دیګه هم پیش میري ؟ ورته ومي ویل : بسیار تشکر میبخشي چرتم دیګر طرف بود . دا وه زما د ژوند یوه خوږه خاطره چې اوس مي ژړوي او په چرتونو کښې ناست یم .

که څه هم دا مي د سږ کال لومړی روژه مات و خو د **علامه رشاد بابا** سره مي وروستی روژه مات و ، خدای تعالی ج دې **علامه رشاد بابا** وبخښي او جنت فردوس مو ور ته غوښتی . د ده خدمتونه ، نصیحتونه ، ښېګڼي ، حسن نیت او خلوص نه هېرېدونکي دي ، خدای تعالی ج دې موږ ته قوت او برکت راکړي چې د ده یو خو خویه د ځان کړو . آمین

## د پوهاند رشاد

# ادبي او سیاسي شخصیت ته اجمالي کتنه

فضل محمد پنهان

د ۱۳۸۳ لمریز کال د لیندۍ د میاشتي پر ۲۳ مه نېټه مي د ارواښاد **پوهاند علامه رشاد** د دردناکي مړيني په باب د کندهار د محلي راډيو څخه دا خبر تیا واورېده :-

د فاضل استاد **علامه عبدالشکور رشاد** د دردناکي مړيني په هکله ځانگړې مجله خپرېږي. د هیواد ټولو پوهانو، عالمانو، ادیبانو، فرهنگیانو، لیکوالانو اوشاعرانو ته خبر ورکول کیږي چې خپلي مقالې، مضامین، شعرونه او لیکني د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د کندهار مجلې دفتر ته راوړي .



ارواښاد علامه رشاد او لیکوال

زه چې د فاضل استاد پوهاند **علامه عبدالشکور رشاد** صاحب په ۱۳۴۶ لمریز کې د ادبیاتو او انساني علومو په پوهنځي کې څلور کاله شاگرد وم، نو ما هم لیځي رانغښتلې چې د دې ادبي بهیر په میدان کي د قلم نیلی وځغلوم، او د خپلې نیمگړې سویې مطابق د ارواښاد **علامه رشاد صاحب** په هکله څه ناڅه څه ولیکم .

خدای بخښلی **پوهاند علامه رشاد** د دې هیواد ستر استاد، عالم پوه، ادیب، تاریخپوه، سیاستپوه، ژبپوهاند، شاعر او یو پېژندل سوی بین المللي شخصیت و . زه به څنگه و کولای سم چې د هغوی دا لوړ پوهنیز شخصیت دي تر خپل مات او ناچیزه قلم تر څوکي لاندي راولم، او د هغوی پر مدبرانه او متبحرانه شخصیت دي څه ولیکم او هغه څه چې د فاضل استاد د علمي او پوهنیز شان سره لایق، مناسب او وړ وي، په دغو یو څو نیمگړو کرښو کي ولیکم . بلکي د هغوی پر علمي، ادبي او سیاسي شخصیت باندي که چیري کتابونه ولیکل سي زما په اند دا به داسي معنا ولري چې د اوبو یو څاڅکی په دریاب کي ولوېږي، لکه میرزا حنان چې د حمید په باب کي وایي :-

د حمید د شعر و بحر ته حنانه !

یو څو څاڅکي دي لوېدلي ستا اشعار

ځکه نو د ف ضل استاد پر پوهنیز بین المللي شخصیت څه لیکل زما ت ِ نیمگړي توان او قدرت تېر دي. استاد د علم او ادب په ـهان کي یو ځلاند ستوری و . هغوی په خپله متبحرانه ِ وهه د افغاني ټولني ټول تیاره گوټونه

روښانه کړل . څرنګه چي پوهاند صاحب په یوه علمي کورنۍ کي پیدا سوی و، د خپل عصر او وخت مروجه علوم یې ټول ولوستل چي وروسته یې ادبي، سیاسي او اجتماعي علومو ته مخه کړل چي د پښتو ژبې د ادب او پښتني تاریخ سره د هغوی ډېره علاقه او توده مینه وه .

دنده پر غاړه واخیستل او په زر ګونو شاګردان یې د ادب او معرفت په علم مزین کړل او افغاني ټولني ته یې وړاندل کړل .

پوهان او عالمان نه یوازي دا چي خپل ملت او ولس ته مادي شعور وربخښي بلکي معنوي ځلانده، عالمانه او پوهنیزي څېړني او لیکني هم کوي چي د خپلي ټولني او



د باړه ګلۍ په څېړنغونده کښبي افغاني پلاوی د راډیو سره د مرکې پر مهال د نبی لوري اروانباد علامه رشاد، اروانباد مولانا ارشاد، اروانباد نوراحمد شاکر او اروانباد مولانا قیام الدین خادم ـ د زمري ۱۸ مه ۱۳۴۴ ل کال

د استاد د خبرو لهجه ډېره سنجیده، خوږه او متینه وه . هغوی به په ټولګۍ کي د هر شاګرد و پوښتني ته په ډېره سنجیده، پسته او خندانه لهجه جواب وایه .

هغوی د ټولو شاګردانو سره په مینه او محبت خبري کولې او ټولو شاګردانو د هغوی زیات احترام درلود . هیڅ یو شاګرد د پوهاند صاحب څخه شاکي نه و، او ټولو په مینه ورته کتل .

فاضل استاد په کال ۱۳۳۶ لمریز کي د پښتو ټولني علمي غړی و، چي پسله هغه د کابل په پوهنتون کي د ادبیاتو او انساني علومو په پوهنځي کې د استادۍ مقدسه

ولس ذهنیتونه روښانه کړي چي په افغاني ټولنه کي داسي پوه، عالم، ادیب، شاعر، لیکوال، تاریخپوه او سیاستپوه **علامه استاد رشاد صاحب** و . چي نه یوازي د افغانستان پوهانو بلکي د ټولي نړۍ پوهانو او عالمانو ده ته دقدر په ستر ګه کتل .

استاد یو ستر څېړونکی او شاعر و . استاد په ادبي او شعري تلازماتو کي د لوی لاس خاوند و . استاد د شعر په ټولو اشکالو پوهېدی، د هغوی په اشعارو کي عقلي استحالت نه لیدل کېدی . پوهاند صاحب هر ډول اشعار ویلي وه، لکه : - غزل، قصیده، مثنوي او رباعي .

که څه هم ښاغلی استاد په یوه بډایه کورنۍ کې پیدا سوی و. خو ده په خپلو اشعارو کې د غریبانو او یتیمانو اوسکې په خپل مهربانه لستوني وریا کولې او د هغو په غم غمجن و. هغوی په خپلو اشعارو او قصیدو کې لکه د غزنوي دورې شاعرانو چې د خپل ممدوح مدحه به یې کول، خو پوهاند صاحب د درباریانو او امیرانو مدحه نه کول. د **فاضل استاد رشاد** قصیدو او شعرو اکثرو ملي، حماسي، اجتماعي او انتباهي شکل او رنګ درلود.

فاضل استاد په شعر او ادب کې زیات کتابونه لیکلي دي، چې ځیني یې چاپ او نور لا ناچاپه پاته دي.

استاد یو وطنپال، ملي او یو سیاسي شخصیت و، په کال ۱۳۲۶ لمریز ۱۹۴۷ میلادي کې چې د ویښو ځلمیانو ګوند جوړ سو، ښاغلی استاد د همهغه ګوند غړی و.

سید مسعود پوهنیار د خپل مشهور کتاب "ظهوری مشروطیت و قربانیان استبداد در افغانستان" په دوهم ټوک کې داسي لیکلي دي:-

د ۱۳۲۶ لمریز کال په شاوخوا کې د حاجي ګل محمد خان په کور کې چې د خدای بخښلي ارواښاد فیض محمد انګار پلار و، او کور یې د کابل په چنداول کې واقع و، د افغاني منورینو د خوا یوه غونډه جوړه سوې وه چې په هغه کې له کندهاره څخه علامه حبیبي، **علامه رشاد**، محمد رسول پښتون، قاضي بهرام اڅکزی، عبدالهادي خان توخی، جیلاني خان الکوزي او ځینو نورو لکه د ننګرهار او لغمان څخه ګل پاچا الفت، غلام حسن خان ساپی، سید شمس الدین مجروح، مولوی قیام الدین خادم، پوهاند صدیق الله رښتین. د کابل څخه میرغلام محمد غبار، ډاکټر محمودي، غلام محی الدین زرملوال، محمدارسلان سلیمي وردګ، میر محمد اسمعیل بلخي، محمد اسمعیل مبلغ، او داسي نور راټول سوي وو.

د ارواښاد بخرکي په حواله د ویښو ځلمیانو په ګوند کې هر ډول روشنفکران راټول سوي وو، لکه:-

مذهبي مبلغین، نشنلسټان او وطنپاله پوهان او عالمان.

د دې ګوند هدف دا و - و اسلام او دین ته احترام، د وطن ابادول او انکشاف، په هیواد کې دموکراسي، د مطلقي شاهي پر ځای مشروطه شاهي، د عالمانو او مشایخو عزت او احترام، د ډیورنډ منحوسه کرښه غندل او د پښتونستان د تحریک ملاتړ کول، د اداري فساد او رشوت مخنیوی د دغه ګوند اصلي او اساسي ټکي وه، چې دا ګوند په ۱۳۴۳ لمریز کال کې د منځه ولاړ او د دې ګوند اکثره غړي د شهید محمدهاشم میوندوال په ګوند کې چې مترقي دموکراټ یادېدی شامل سول.

ښاغلی میوندوال په کال ۱۳۴۳ لمریز کې صدراعظم سو، ده د خپل حکومت په وخت کې دغه ګوند تاسیس کړ. د دغه حزب اکثره غړي دولتي مامورین وه، او دغه ګوند د مساوات په نامه یوه جریده راوایستل چې **فاضل استاد علامه رشاد** هم د دې ګوند غړی و.

د ۱۳۵۰ لمریز کال په وروستیو کې علامه حبیبي، **علامه رشاد**، استاد بېنوا، فیض محمد انګار، غلام جیلاني خان الکوزی، نورمحمد خان وکیل، محمد ابراهیم خواخوږی، او داسي نورو د دیموکراټ ګوند سره بای کاټ اعلان کی، او ځیني نور، لکه:-

محمد علم بخرکی، عبدالغني خان میوندي، غلام دستګیر خان پوپل، او ځیني نور په دغه ګوند کې پاته سول.

ارواښاد **فاضل استاد رشاد صاحب** علاوه پر سیاسي مبارزه د خپل عمر زیاته برخه یې د خپل ولس لپاره په څېړنه او خدمت کولو کې تېره کړه، چې ډېر کتابونه یې لیکلي دي چې د چاپ او ناچاپه آثارو شمېر یې سلو ته رسیږي. په زرو مقالې یې لیکلي دي او په سوو شعرونه یې ویلي دي، چې د هیواد په مطبوعاتو مجلو، ورځپاڼو او جریدو کې خپاره سوي دي. **علامه پوهاند رشاد صاحب** علاوه پر پښتو، دري، فارسي، اردو، عربي، انګلیسي، روسي، هندي په سانسکریټ هم پوهېدی.

خدای بخښلي **فاضل استاد رشاد صاحب** د هیواد په داخل او خارجي څېړنغونډو کې برخه اخیستې ده چې هلته یې علمي څېړني او علمي مقالې ویلي دي.

اروادې ښاده وي



**وا یې وره، عمل په وکه!**

- ښه وکه، دریاب ته یې واچوه. (پښتو متل)
- هغه چې له پوهي څخه ښه ده، تجربه ده.
- زړه نازړه خلک هیڅ وخت نه بریالي کیږي. "ناپلیون"
- کله چې د یوه کار د سر ته رسولو له پاره ملا وتړی، نو په بشپړ ډول د شک دروازې وتړه. "نیچه".

محمد ابراهيم سپېڅلی

# پوهنيزه پانګه

د پر کلونه به تېر سي، او ډېري ککري به راځر ګندي سي، د پر زامن به د عبدالشکور په نامه ونومول سي او د پر استادان به قلمونه اوچت کړي او د پر څه به وليکي، خو د "رشاد" په ډول به يو خداي نازولی هيڅکله پيدا نه سي او که پيدا هم سي فکر نه کوم چي د **پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** په څېر به يو پوه، ذهين، حليم، سخي، د ويښ ضمير لرونکی او . . . خانګړ تياوي ولري، ځکه "**رشاد**" يوازي د پوهنتون استاد نه، بلکي هغه يو داسي انسان و چي خپل د ژوند د پره برخه يې د خپل ځپلي اولس د ويښتيا په لار کي لګولې و.

هغه يوازي شاعر نه و بلکي د ټولني پر ټولو ناخوالو يې پام و، او له يقينه په خوربدی، او د دغه ناخوالو د له منځه وړلو لپاره يې د قلم په ملتيا شعرونه پنځول.

"**رشاد**" يوازي ليکوال نه و، بلکي هغه داسي څېړونکی، تاريخ ليکونکی، ژب پوه او لوی اديب و چي په ډېر و ژوند يو ژبو يې ليکل او لوستل کولای سوای. نه يوازي د سيمو په ژوند يو ژبو باندي لاسبري و بلکي په مړو ژبو يعني سنسکريت هم پوهېدی او اخيسته يې ځني کولای سوای.

"**پوهاند**" نه يوازي د کتابونو لوستونکی و، بلکي هغه د پوهي په ويشلو کي دونده سخي انسان و چي اتل او ان د مرګ تر وروستيو سلګيو پوري يې لا د چا پوښتنه بې ځوابه نه پرېښوول. او داسي قانع کوونکي او هر اړخيزه ځواب يې ور ته وايه چي قلم يې د ليکلو ځواک نه درلود.

"**اکاډميسين**" يوازي يو عام سړی نه و، بلکي هغه تل د حق ويل د خان ويار باله او د جابر په وړاندي يې د دغه اکبر جهاد لمن نه پرېښوول.

"**علامه**" يوازي د څو مقالو ليکوال نه و، بلکي هغه پر مقالو سربېره کابو ۹۴ بېلابېل داسي آثار ليکلي وه چي هر يو يې د لوی شوواند پر علميت د شاهدی ناري وهي او هره ليکنه يې د نورو ليکوالانو لپاره د يوه معتبر ماخذ معني لري او په پوره جرئت ورڅخه د خپلو ليکنو په تائيد کي کار اخيستلای سو.

نومورِي يوازي يو سپين ږيری نه و، بلکي هغه به تل هر هغه چاته چي ورسره مخامخ به سو، ښې او هر اړخيزي مشورې ورکولې او د خپلو تجربو څخه به يې ور ته داسي خبري کولې چي هره خبره يې د کاڼي کرښه او د زرو په تاله ارزېده.

**استاد** د هر چا په وړاندي د ورين تندي او خوږې خندا په درلودلو سره بې توپيره او بې ريا چلند کاوه او که به کور ته ورغلې نو د يوه رښتيني مېلمه پال پښتانه په ډول به يې ستا درناوی کاوه او د تګ پر مهال به يې خامخا او د ټينګار سره سره تر دروازي په خپله ملګر تيا نازولې.

خو افسوس !!! چي اوسمهال دغه پوهنيزه پانګه زمونږ په منځ کي نسته هو هغه د پوهانو خبره چي "د پوهي او علميت د ډګر اتلان نه مري!". نو رښتيا هم همداسي ده **پوهاند علامه رشاد بابا** که په ظاهره مړ دی او تر څو منه خاورو لاندي دی خو په آر ډول زمونږ په زړو کي د ده ټډېل خاطرات ژوندي دي او د ده چاپ سوي آثار هر ګړی د دغه خواخوږی را په زړه کوي او نه مو پرېږدي چي د دغه پوهنيزي پانګي يادونه دي زمونږ له زړو او ذهن څخه کډه وکړي ځکه دغه ژوندی کتابتون د خپل ژوند ډېري شپې او وځي قلم په لاس رڼې تيري کړي وې تر څو دغه په تيارو کي ډوب اولس د يوه روڼ سهار پر لور

رهنمايي کړي او له دغه ورپېښو ستونزو څخه يې د تل لپاره وژغوري. د خوښيو او لړيو خندا يې پر شونډو ورنڅولې واى.

نو ځکه زه وايم چې **پوهاند علامه رشاد بابا** يوه داسې پوهنيزه پانگه وه چې تر ډېره به يې ځاى څوک ډک نه کړاى سي خو د يادونو او کارونو ډېوې به يې د پوهې، هنر، ادب، تاريخ، څېړني او نورو علومو د مينه والو په زړو کې د تل لپاره بلې او روښانه وي.

د دغسي يوه ستر انسان په اړه چې هغه د خپل خواږه ژوندانه ډېره برخه د علمي څېړنو او پلټنو په لاره کي لگولې او ګوښتل يې چې د يوويشتمي پېړۍ دغه خوب وړى قوم چې لا تر اوسه د غفلت په خوب ويده دي او د خپل نامه په خاطر د سلو کورونو ته اور اچوي راويښ کړي. څه وليکم. خو دونده به ووايم چې هغه ورځ زما په ژوند کي تر ټولو ترخه ورځ وه چې کله مي وغوښتل د ماخستن له پاره د گردي مېز خپرونه ايډيټ او د خپر ېدو له پاره چمتو کړم. لا کمپيوټر ته نه وم کښېنستلى چې ځوان شاعر عبدالقيوم مينه وال د تليفون د لاري خبر کړم چې د يوه مهربان او لوى انسان د مهرباني او خبرو څخه محروم سوو او زياته يې کړه چې همدا اوس د آئينې په فرهنگي او مطبوعاتي مرکز کي د کندهار ډېرى اديبان او د علامه رشاد بابا مينه وال راغونډ سوي دي، نور نو باور وکړئ نه يم پوهېدلى چي څنگه مي ميکروفون او ميني ډيسک په لاسي بکس کي کښېښودل او څنگه ور ورسېدم؟ هلته د ورسېدو سره مي ډېر کى اديبان وليدل چي شونډو يې وچ پتري نيولي او لى به ليه گرځېدل نه پوهېدل چي څه وکړي؟

خير يو لړ. گړى وروسته غونډه پيل سوه چي هر يوه پکښي خپل خپل نظرونه وړاندي کړل. دغه ورځ زما له پاره ځکه تر ټولو ترخه ورځ وه چي په همدې ورځ زموږ له سره د يو داسي چا سيورى او مهرباني ليري سوې وه چي تل به يې د خپل همدغه هيواد او ځپلي ملت د سمسور تيا او بريالیتوب له پاره قلم له گوتو نه ليري کاوه. او په دې اړه به يې د همدغه خلکو د ويښولو له پاره خپل خوږ خوب قرباني کاوه. نو که په لنډو ټکو کي وو ايم چي دغه علمي او پوهنيزه ډېوه نه يوازي پښتنو او افغانستان ته



بلکي دې سيمي ته يو الهي ډالى او لوى نعمت و. چي ور په برخه سوى و. د ده مړينه د يوه عادي انسان مړينه، نه بلکي د پوهي د يوې ستري پانگي، د يوه رښتيني ذهين او د خپل مهال د يوه سقراط مړينه ده. نو ځکه يې په وير او غم باندي نه يوازي د دې هيواد اديبان بلکي د دې درستي سيمي اديبان اوښکې، تويوي او د لوى خداى څخه ورته د فردوس جنت غوښتنا کوي.

گزارش :-

# پرون دي دور د خانۍ و ننن په خورو لپو دوعا درته کومه

د ۱۳۸۳ لمریز کال د لېندی د میاشتي یوولسمه نېټه او د چهارشنبې د ورځي ماپښین و چي د هیواد د نورو سیمو غوندي کندهار ته هم د هیواد، سیمي او ختیځ د وتلي او منلي پوه ارواښاد پوهاند علامه عبدالشکور رشاد بابا د مړیني دردناکه خبر راورسېد .

سمدلاسه په ویرجنو زړونو د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست لخوا همدا بوږنوونکی خبر د ولایت مقام کښي د کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون ته ورکړه سو. او په کندهار کښي همدا پښتون والي وُچي په ډېره خواشیني سره یې د فرهنگیانو په استازیتوب د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي ته په درد ېدلي او گرومجن ږغ سره وویل : "رئیس صاحب ! د رشاد صاحب سره دي خدای ښه وکړي". او ورپسې یې زیاته کړه که سمدلاسه ستاسو فرهنگي جرگه او فرهنگي مشران سره راغونډ او که نه خوریږي د منډیگک ماڼۍ ته به راسي .

د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابی لاس په کار سو او ډېر ژر یې دا ویرجن خبر او د کندهار والي لارښوونه و ښاغلو ډاکټر عبدالرازق پالوال، عبدالمالک همت، د کندهار مجلې مخکني مدیر عبدالکریم طالب رحیمي، د پوهنتون مخکني رئیس حیات الله رفیقي، د کندهار پوهنتون د انجینری د پوهنځي رئیس انجینر عبداللطیف آشنا، د پوهني د ریاست تکړه استاد احمد صمیم، استاد فضل محمد ینهان، جمال الدین یاور، د ظاهرشاهي لیسې مدیر سراج الدین خان، استاد غلام محمد خان، استاد مهدي خلیق او استاد نورالحق خان ته ژر تر ژره خبر ورکړه سو خو د اطلاعاتو او کلتور ریاست ته په د راتلو سره د ولایت مقام په مېلمستون کښي د منډیگک ماڼۍ ته ورسو .

دلته د دوی د راتگ سره سم د اطلاعاتو او کلتور رئیس او د دې ریاست د کندهار مجلې کارمند مطیع الله روهیال په ملتیا هملته ورسېده .

هلته کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون د مخکي څخه لا د خبرو له پاره تیار ولاړ و، پنځ یې ډېر وران ښکارېده د دوی مرستیال محمد انس او کندهار مستوفي غلام حیدر هم ورسره ملگري وو، سمدستي غونډه پیل سوه .

د ارواښاد د مړیني له کبله ژوره خواشیني څرگنده سوه، او ورسره سم د هغه ارواښاد د ښخېدو د ځای او د جنازې د مراسمو د ښه ترا تنظیم او درنښت د پر ځای کېدو له پاره څرگندوني وړاندي سوې .

د ښخېدو په ځایونو کښي د میرویس نیکه د گنبدي د سهېل لور لوړي غونډۍ او کندهار پوهنتون لویدیځي غونډي یادي سوې خو زیاترو د پوهنتون غولی ځکه خوښ کړ چي د ارواښاد بابا د زوی ډاکټر طارق رشاد ټلیفوني غوښتنه هم همداسي وه .

نو پرېکړه پر دې وسوه چي د پوهنتون په غولي کښي دي د ارواښاد د ښخېدو له پاره ځای د همدې جرگه گۍ د ټولو غړو په گډون سبا سهار چي د پنجشنبې ورځ او د لېندۍ دوولسمه نېټه کېده غوره سي .

د دې تر څنگ د اطلاعاتو کلتور ریاست سره همغاړي او همکاري فرهنگي جرگه گۍ ته د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي په مشرۍ دنده وسپارل سوه خو د جنازې د درنښت او جنازې د راوړلو په لاره او بیا د ښخېدو تر ځایه او د ښخېدو په چارو کښي د سمون او نظم له پاره کار وکړي او د کار او د چارو د سپارونکو د خبر تیا او د هغوی سره د شر کېدو له پاره سبا اداري غونډي ته وړاندي

کره سي . دا غونډه د شپې تر (۹) بجو روانه وه او بیا پر بکره وسوه چې سبا سهار اته بجې به په ولایت مقام کښې د قبر د ځای د ځرګندتیا لـه پاره سره راغونډیږو . سبا سهار (۸) بجې ټوله ټاکلي کسان ولایت ته د راتلو سره سم د کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون په ملتیا د پوهنتون تر انګړه ولاړه او هلته یې د ارواښاد رشاد بابا د قبر ځای په ګډه سره وټاکه . وروسته د جرګه ګی لخوا جوړ سوی چارلیک اداري غونډي ته د عبدالمجید بابي لخوا وړاندي سو . چې ورپکښې د پوهنتون ریاست، د پوهني ریاست، د ټرانسپورټ او ملي بس ریاستونو، ښاروالی ریاست، د قومونو او قبایلو ریاست، د علماو شوری ریاست، حج او اوقافو ریاست او امنیه قومندانی ته غوره کره سوي دندي ځرګندي او د هغوی څخه د اړوندو چارو د پر وخت او ځای سر ته رسېدني ژمني واخیستل سوې .

د بابي لخوا د سوو چارو او نیول سوو ویلاړونو خبر ګړی په ګړی په کابل کښې د ارواښاد زوی ډاکټر طارق رشاد او یا د هغه استازي حمید متواضع ته ورکول کېده .

چې په ترڅ کښې به یې د هغوی غوښتني کندهار والي ته او دلته د فرهنګي جرګه ګی غوښتني هغوی ته رسېدلې .

د همدې ورځي په مازدیګر د اطلاعاتو او کلتور ریاست د کندهار مجلې د کارمند مطیع الله روهیال په ابتکار د ارواښاد رشاد بابا د مړیني له کبله د طلوع افغان د خانګړي خپروني و ترتیب، ټایپ او چاپ ته ملا وتړل سوه، په دې چارو کښې د همدې ریاست رئیس عبدالمجید بابي، او د تاریخي ابداتو د څانګي مسئول عزیز احمد عزیز، د باختر آژانس مدیر محمد داود احمدي او د دې مدیریت کار کوونکو نورالله نوري، جاوید وفا او جاوید سعادت د ۱۳ ساعتونو په موده د شپې تر (۴) بجو لګیا وه څو د هغه په چاپ بریالي سوه .

د جمعې ورځ د لېندی ۱۳ مه نېټه سوه دا د ارواښاد رشاد بابا د جنازې د راوړو ورځ وه، سهار د وخته د اطلاعاتو او کلتور ریاست د خبرتیا لـه مخي د ارواښاد مینان او دوستان، فرهنګیان، لیکوالان، ښوونکي، محصلین او زده کړیان د ګڼ شمېر ښاریانو سره د ولایت مقام مخ ته سره راغونډ څو هلته د (۲۰) ارغږیو ولاړو ملي بس موټرونو کښې تر اخوند صاحب پوري ځانونه ورسوي .

هلته د ولایت په مېلمستون د مندیګک په ماڼي کښې ته کندهاروالي د ټولو رئیسانو، پوځي او امنیتي چارواکو او یو شمېر مېلمنو او کوربه و فرهنګیانو سره د جنازې و مخ ته د درنښت د پر ځای کېدو په ویلاړ ولاړ وه، او دا په داسي حال کښې وه چې کندهار والي د شپې تر ۱۰ بجو او د پرشو دقیقو د ارواښاد د قبر د جوړېدو او کیندلو و چارو ته خپله ولاړ و . کله چې د جوړښت په چارو کښې د چارو کارګران د طبیعي ستونزو سره مخ سوي نو دوی ته د پوهنتون د انګړ په یوه بله برخه کښې ځای ټاکل سوی و .

دا مهال د سهار ۸ بجې او ۳۰ دقیقې وې چې کندهار والي د جنازې مخې ته د ورتللو لارښوونه وکړه او هر څوک و موټرو ته وختل، کله چې دا ګڼ شمېر کسانو د ښار ختیځ لور ته مخه کړه د څو کالو وچکالي وروسته د اللهی رحمت لـه مخي د اورښت پاسته پاسته څاڅکي هم پیل سوه، د ښاریانو دوکانونه او بازارونه تړلي وو . د ښار اوسېدونکي ډلي ډلي د دامان ولسوالي پر لور رهي وه او د لاري په اوږدو کښې د سړک په دواړو غاړو کښې دلته او هلته خلک ډلي ډلي د جنازې د رارسېدو او هغه ته د درنښت د پر ځای کېدو له پاره ولاړ وو .

په سلګونو موټران او په هغو کښې د شمېره وتلي سپرلیان په داسي حال کښې چې کندهار والي، د ولایت اداري رئیس غلام فاروق فرهمند او د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي یې په سر کښې وه د اخوند صاحب د زیارت تر سیمي ورسېده .

د امنیې قومندان، د دې قومندانی اړوند پوځیان، د اداراتو رئیسان او د ارواښاد مینه والو، زیات شمېر فرهنګپالو او فرهنګیانو خپله موټریزه لړی د لاري په اړخ کښې سره سمه کړه او کله چې د موټرونو پیاده سوه یو ګړی وروسته د سلګونو موټرانو لړی د کابل ـ کندهار پر نوي او دې لور ځرنګوالي جوړ سوي سړک راښکاره سوه .

کله چې درنښت کوونکو ته راورسېده ټول ودرېده، او د مخکښي سپین امبولانس څخه د ارواښاد د بې ښوره او خاموشه جسد لـه څنګه د هغه زوی ډاکټر طارق رشاد راکښته سو، او په ډېره ګرومجنه څېره او د اوښکو سره په ملتیا یې کندهار والي او د ادارو د رئیسانو سره روغبړ وکړ . همدارنګه د دوی سره مل د ټول ګټو وزیر ګل آغا شېرزی، د کار او ټولنیزو چارو وزیر حکیم تني وال او د دې وزارت مرستیاله قمره اڅګزی چې د کابل څخه یې د ارواښاد رشاد بابا جنازه په خپله ملګرتیا بدرګه کړې وه او بیا په لاره کښې د زابل والي ساغلي خیال هم ورسره ملګری سوی و، د چارواکو سره تر لنډ روغبړ وروسته ارواښاد ته د دوعا د تر سره کېدو او د انجینر محمد یوسف پښتون لخوا د ارواښاد پر تابوت د ګلانو د ګېدی تر ایښوولو وروسته د ښار پر لور د جنازې د همدې ملګري درنې لړی خوځښت پیل کړه سو .

دا مهال د جنازې مل کسان او د درنښت کوونکو د شمېره څخه او د دوی د سپرلیو د موټرانو څخه یوه بېساري اوږده لړی چې سر او پای یې په آسانتیا نه ځرګندېدی په ډېر برم د لوی ویر تر سیوري لاندي د ښار پر لور رانژدې

کېده . د لاري په اوږدو کښې خلک ډلي ډلي دلته او هلته په زياته خواشيني سره د ارواښاد رښاد د سپېڅلي جسد د درنښت له پاره ولاړ وو .

جنازه ورو ورو د ښار زړه ته را نږدې کېده . د حضرت جي بابا د سيمي څخه د پوهني د رياست زده کړيان او د هغوی ښوونکي په داسي حال کښې چي د وير او ماتم او د ارواښاد د لوړ شخصيت د ستاينې ليکنې يې د هغوی د غټو عکسونو سره په لاسونو او د ماتم د څرګندوني په توګه يې توري پټۍ تر لاسونو تړلي وې . د سړک په دواړو غاړو کښې په ډېر نظم او نيغو کرښو کښې ولاړ وو . او کله چي جنازه د احمدشاه واټ . سردار مدد خان ساګزي څلور لاري . او د چونې د لويي لاري د پاسه تېره او د پوهنتون انګړ ته نږدې سوه . د پوهنتون محصلين . استادان او د پوهنځيو رئيسان د ګڼ شمېر ماتمي شعارونو او ليکنو سره د لاري په دواړو غاړو کښې په ګرومجنو څېرو سره ولاړ او جنازې ته يې د غبرګو لاسونو په خوځولو او د سر په ټيټولو د درنښت مراتب څرګندول .

کله چي جنازه د قبر ځنګ ته ورسېده . د قبر تر څنګ د ښاروالي رياست له لوري د لويو دوديزه ټوکرانو او ټغرانو په در بدو سره لويه مځکه پوښل سوې او پراخ سيوری يې په داسي حال کښې جوړ کړی و چي تر لاندي سرې غالی غوړېدلي او چارچاپېره يې څو پوړه چوکۍ په ډېر نظم او ډل سوي وې . خو د خلکو ګڼه ګوڼه دونده وه چي په چوکيو او ځانګړي ځای کښې يې ډېره ډېره لږه برخه هم نه سوه ځای . د ارواښاد د وروستي ليدو په بهير کښې زياته ګڼه ګوڼه جوړه سوه او هر چا دا کوښښ کاوه څو د نورو دمخه د هغوی د نوراني مخ کاته وکړي .

بيا هم د خلکو د ځای پر ځای کېدو وروسته د اسقاط دود پر ځای او بيا د جنازې لمونځ ورکړه سو او بيا د وينا د مېز د شاه څخه د قرآن مجيد د څو مبارکو ايتونو په لوستلو سره د ويناوو او خواخوږيو د پيغامونو د اورولو برخه پيل سوه .

لومړی د ټول ګټو وزير ګل آغا شېرزي د جمهور رئيس د خواخوږۍ پيغام واوراوه

"په ډېره خواشيني سره خبر سوم چي زموږ د هيواد وتلی څېړونکی . علمي او فرهنګي شخصيت د علومو د اکاډمۍ غړی پوهاند اکاډميسين عبدالشکور رښاد د دې نړۍ څخه سترګي پټي کړې .

انا لله و انا اليه راجعون

. . . هغوی په لسګونو ادبي او تاريخي کتابونه ليکلي او زه د هغوی مړينه يوه لويه علمي ضايعه بولم . . . لوی خدای دي هغه ته جنتونه ور په نصيب کړي" .

وروسته کندهار والي انجنير محمد يوسف پښتون د کندهار د خلکو وينا واوروله

". . . موږ د افغانستان د افغاني فرهنګ شمله ور د تاريخ ژبه ، د افغاني غرور ځښتن ، د يوه سپېڅلي کلتور نمونه ، په علمي افق کي ځلاند ستوری ، د علمي يون د وقار ستوری او د حميده اخلاقو سرغنه د لاسه ورکړی . زه هم پخپل وار د لوی ښوواند درانه استاد پتمني کورنۍ ته د خواخوږۍ مراتب وړاندي کوم ځکه چي اصلاً کندهار د فرهنګ سالار د لاسه ورکړی ، زموږ د فرهنګي يون لارښود ابدي نړۍ ته ګډه وکړه او زموږ فرهنګي او ادبي کهول لا وارثه پاته سو . څو که رښتيا ووايم تر هر چا زه ډاډ ګيرنې ته اړتيا لرم .

که څه هم جوته ده چي متبحر عالم ارواښاد علامه پوهاند اکاډميسين رښاد نه تنها د افغانستان بلکي يو نړيوال شخصيت و ، خو ابدي نړۍ ته د ده د سفر ضربه چي کوم افغانستان وليده په ځانګړي ډول يې د کندهار کهول ډېر محسوسوي . ځکه زموږ د حماسو او برمونو ترجمان وداع کړېده . موږ ډاډ ته ضرورت لرو . موږ دوعا ته اړتيا لرو . تر څو موبيا مرکې د رښاد په څېر اشخاصو اکاډميک او علمي حيثيت غوره کړي . او بيا مو فرهنګي نغري تاوده وساتي . . . علامه رښاد واقعاً د افغاني کلتور نمونه او د وروستيو شملورو وروستۍ تکيه وه . . . د لوی استاد سره مينه د افغاني فرهنګ او افغانيت سره ستاسي د مينې ښکارندويي کوي . . . د درونډ استاد روح ته د خوښۍ دوعا کوم او ټولو خواخوږو ته يې د جميل صبر غوښتنه کوم .

وروسته د اطلاعاتو او کلتور رئيس عبدالمجيد بابي د ارواښاد علامه رښاد بابا ژوند ليک واوراوه .

ورپسې د لوی پکتيا د خلکو په استازيتوب د کار او ټولنيزو چارو وزير حکيم تڼيوال خبري وکړې او ويې ويل

"که نن موږ په پوهاند رښاد خاورو اړوو خو هغه ته مړ نه سو ويلای . هغه د ډېرو ارزښتناکو آثارو او آثارو د بېساري ميراث له امله تل ژوندی دی . د ده د مړيني د خبر پر مهال د سيد جمال الدين هغه خبره رايادو سوه چي که څوک ابدي ژوند غواړي د خپل ولس په لاره کښې دي ومري .

. . . هغوی د پښتون قوم د زړونو تکيه وه .

. . . هيواد ته مي د راستنېدو سره دا تلوسه وه چي تل ورسره کښېنم څو زياتو کارونو د هغه د ليدو محرومه کړم .

. . . خوانانو ته د ده د لاري د تائيد تأکيد کوم" .

د ننګرهار ولايت د والي حاجي دين محمد پيغام استاد لال پاچا ازمون واوراوه .

بوراګانو د سپرلو لمتي نيسي؛ پاته په (۱۴۸) مخ کي

# د اندونو پر ښیښه

د

پوهاند

رشاد

څېړه



**ډاکټر عبدالرازق پالوال**

په یوه بې کتابه ټولنه کښې، لکه کندهار چې وُ او لا هم دئ، کتاب موندنه څه اسانه کار نه وُ. په دغسې یوې بې کتابه ټولنې کښې د یوء عالم شخصیت وده او جوړښت طبعاً له نوادرو څخه وي. چیرې چې نه د طبیعي علومو او نه هم د بشري علومو بسیا کتابتون وي، او نه هم چیري د چا لاس و لوړو ښاخو ته رسېدلای سي، عالمان به یې د کتابو په فقر اخته وي.

**پوهاند عبدالشکور رشاد** د خپلي کورني روزني له مخي څخه او هم د دوی پر خپل ځان متکي شخصیت له مخي څخه ځان له ځوانی څخه لا له دغو ناخوالو څخه ژغورلئ وُ. نو دوی و ځان ته ډېر هغه کتابونه ور غونډ کړي ول چې دوی خپله اړتیا ور ته لیدله او لاس یې ور رسېدلای سوای. نو د کتابو له پلوه څخه دوی خپل ځان مستغني کړی و. دغه کار و دوی ته د دې توانایي ورکړې وه چې په خپلو لیکنو کښې له دوو لارو چارو (طریقو Methods) څخه کار واخلي چې د علمي تحقیق اساس جوړوي. یوه لار ئې د شواهدو وړاندل کول وه، او بله یې مقایسوي طریقه وه. دریم میتود چې دوی پخپلو علمي ګروېږنو کښې کار ځني اخیست هغه د دوی دقت Precision وُ. ځکه نو د دوی تاریخي یا نوري اخستني (اقتباسات) خورا دقیقي دي. په تاریخي متونو کښې یې هیڅ لاس وهنه کړې نه ده چې دغه د یوه رښتیاني علمي شخصیت امانت کاري یې د علمي شخصیت اساسي نخښه ده.

په دغسې پښالا کښې نو دوی، د څرګندوني په توګه، په یوه ادبي جنجالي مسئله کښې دومره بېتونه د شواهدو په توګه وړاندي کړي دي چې منکرانو به نور انکار ځني کولای نه سوای، یا نه سي. دغسي یې هم په نورو علمي او تاریخي موضوعاتو او مسائلو کښې په کافي شمېر منابعو سره استناد کاوء چې نور ئې و شکوکو ته ځای نه پرېښاوء او نه ئې پرې ایښئ دئ. د لغاتو شننه او ګروېږنه ئې هم له دغه رازه څخه وه چې د یوء لانجمن لغت اوږ شکلونه به ئې په معاصرو او پخوانیو آثارو کښې وړاندي کول یا ئې لا وړاندي کړي دي. بل ئې په لغت پوهنه (فقه الغه Philology) کښې هم له مقایسوي او تاریخي لارو چارو څخه کار اخستئ څو د ځان او هم د نورو قناعت ئې حاصل کړئ وي.

ښاد روان **علامه رشاد** عربي او فارسي لغات په خپلو لیکنو کښې په هم هغه اصلي شکل سره استعمالول، که چیري د دوی په لیکنو کښې له دغه اصله څخه انحراف ولیدء سي، هغه به هرو مرو د کاتب یا هغه چا وي چې موږ ئې په غلطه سره مصحح بولو. د دوی وظیفه دا ده څو چاپېدوني جوله ئې له اصله سره مقایسه کړې او په چاپېدوني جوله کښې ئې د اصل له مخي څخه اصلاحات کړي وي.

و ځوانانو ته ښاییږي چې د ښاد روان پوهاند **رشاد** آثار داسي په دقت سره لوستلي وي، څو نه یوازي ئې د دوی له محتویاتو څخه اخستنه کړې وي، بل لا د دوی و علمي تحقیقي میتوډ ته هم ځیر سوي وي او زده کړه ئې ځني کړې وي. ځکه چې د دوی لیکني خوښي لفاظئ نه دي، بل لا هره جمله او هر عبارت ئې علمي او یا ادبي محتوا لري. دغسي لیکني باید نه یوازي یوه پلا، بل لا باید اوږ پلاوي ولوستلي سي.





استاد حبیب الله رفیع

د کندهار مجلې درنو چلوونکو تر هر څه وړاندې مې تاوده سلامونه ومنئ !

له موږ او تاسو نه د ارواښاد **استاد پوهاند اکاډیمسین علامه عبدالشکور رشاد** ابدي بېلتون په اړه ستاسو نظر پاڼه راورسېده . پښتانه وایي "**سل دې ومره یو دې مه مره** !"

**استاد** واقعاً هم د د همدې ګوتو په شمېر کسانو له ډلې څخه وُ، او لوی خدای ﷻ دې موږ او تاسو ټولو ته د دوی د ویر من بېلتون د لوی غم د زغم توان راکړي او د دوی دې جنتونه په برخه کړي .

**استاد** ګڼ اړخیز شخصیت درلود :

- **لوی استاد** مبارز وُ او د ژوند تر پایه یې دا سنګر په مېړانه او جرأت تود وساته .
- پیاوړی استاد وُ له پوهنځي نه یې تر پوهنځي پورې شاګردان وروزل او په انفرادي توګه د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې د مراجعینو استاد او لارښود وُ .
- پوخ شاعر وُ او له تاندې ځوانۍ نه یې د مرګ تر شېبو پورې له مطلبه ډک، هدف لرونکي او د ملي سنګر روښانوونکي شعرونه ویل او په هغه کې یې د ویرې او ډار کرښه نه پېژندله .
- دقیق او ځیر محقق وُ، د تاریخپوهنې، ادبپوهنې، ژبپوهنې، لغتپوهنې، وګړپوهنې، کتابپوهنې، ټبرپوهنې، عروضپوهنې او نورو ټولنیزو پوهنو په برخه کې یې داسې بشپړې څېړنې کولې چې د موضوع په اړوند یې لوستونکي ته هر اړخیز معلومات ورکول او هغه یې د نورو ځځونو له ټولو نه خلاصاوه . د نمونې په توګه کله به چې د ده په څېړنو کې د کوم ځای یا شخص نوم په ضمني توګه راغلی وُ، ده به په لمنلیک کې د هغه معرفي هم کوله او بشپړ معلومات به یې ورکول، یا به که کله په کوم لغت بحث وُ ده به د ګڼو ژبو اندولونه او بنسټونه هم ورسره راوړل، حتی په ځینو شعرونو کې راغلو نومونو او پېښو ته یې هم حاشیې ورکولې او په دې توګه به یې خپلې لیکنې هر اړخیزې او غنې کولې .
- د استاد معلومات په ګڼو ژبو کې د لیکل سویو کتابونو پر ژوره مطالعه سربېره د دوی پر ژوره مشاهده هم ولاړ و، د دوی تر اوو زیاتې ژبې زده وې، او په ټولو کې یې مطالعه درلوده، او هر څه به یې چې لیدل، اورېدل په دقیق ډول به یې حافظې ته سپارل .

همدې ځانګړنو او پیاوړي استعداد **استاد** ته د ژوندي دایره المعارف بڼه ورکړې وه، چا به چې په هره موضوع کې څه ترې وپوښتل دوی به په داسې توګه لکه د کتاب پاڼه چې راواړوې، دقیق معلومات ورکول، سنې، حتی د کتابونو مخونه به یې ورښودل او صحنې به یې په ډېر دقت او تصویر کشۍ بیانولې او په دې توګه به یې د پوښتونکې پوښتنې ته دقیق او بشپړ معلومات ورکول .

له **استاد** سره هره ناسته د یوه پوهنتوني درس په اندازه غنې او ګټوره وه، او د ژوند تر وروستۍ ورځې پورې یې علم ښانده او معلومات یې خورول .

د دوی تر ابدي بېلتون وروسته د دوی مقالې، رسالې او کتابونه موږ ته د یوه قیمتي او درانه میراث په توګه راپاتې سول، خو افسوس چې هغه دایره المعارفي

معلومات چي د دوی ماغزه پرې ډک وو له دوی سره یو ځای ولاړل او د خاورو غېږي ته ولوېدل او دا واقعاً چي یوه نه جبیره کېدونکې ضایعه ده .

اروا یې ښاده !





**سرخېړونکی عبدالواجد واجد**

د کندهار مجلې محترم مدیریت ته !

السلام علیکم و رحمه الله و بر کاتهٔ

د اروا ښاد **استاد اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد** د علمي او ادبي شخصیت ابعاد خوله حده زیات دي او زه د **اروا ښاد استاد** د یو وړوکي شاګرد په حیث نه سم کولای چي د **استاد** علمي او ادبي لوړ شخصیت په باب ټولي ښېګڼې بیان کړم، ځکه که د **استاد** د علمي او ادبي شخصیت د ښېګڼو په هکله رسالې او کتابونه ولیکل سي هم کم دي. نو زه څنګه کولای سم چي په دغه لنډه ګنډه لیکنه کي د **استاد** ټول حقوق ادا کړم؟

خو بیا هم وایم چي **استاد پوهاند رشاد** زموږ د ګران هیواد پیاوړی، وتلی او نابغه تاریخپوه، ادبپوه، ژبپوه، فولکلور پوه، ښه شاعر، لیکوال او محقق و. **استاد** د ټولو علومو استاد و، خو د عروضو، بدیع او بیان په باب یې د استادۍ شهرت نه یوازي د هیواد په دننه کي بلکي د ټولي نړۍ علمي، تحقیقي او فرهنګي اکاډمیو او پوهنتونونو ته ثابت دی .

**استاد رشاد** که له یوې خوا په پښتو ژبه ډېر شاګردان روزلي، نو له بلې خوا یې په سلګونو علمي او تحقیقي آثار لیکلي دي چي څه ناڅه یې چاپ او څه یې د ځینو ستونزو له امله ناچاپ پاته دي، **استاد** د ځوانۍ له وخته تر اوسه ډېر شعرونه په مختلفو وزنونو ویلي دي چي د اشعارو مضمون یې زیاتره ملي او ولسي بڼه لري چي د ولس او خلکو دردونو پکښې انعکاس موندلی دی .

**استاد** سره له دې چي د ادبي فنونو استاد و او ټول اشعار یې د ادبي فنونو یوه ستره پانګه جوړوي د انتقادي او سیاسي پلوه هم ډېر قوي او پیاوړی دی. په خپلو اشعارو کي د ظالم ظلم غندي او د ظالم د ظلم او شیطانت پټ راز خلکو ته په یوه شعر کي داسي برملا کوي چي د نمونې په توګه د سر او پای دوه بیتونه یې د موضوع د خوند له پاره را اخلم :

په ښکاره وایي لعنت دي پر ابلیس وي
خو په پټه د ابلیس مخلص انیس وي



دلته سترې په بلنه وي د سولي
هلتې چیغې د جنګونو د تحریص وي

ډېره لوړه او مهمه خبره دا ده چي **استاد** په خپلو اشعارو کي په ډېره مېړانه، زړورتوب او فداکاري د خلکو دردونه، مشکلات، ستونزي او مصیبتونه منعکس کړي دي. په خاصه توګه د **استاد** په شعرونو کي د ملت استقلال، ملي افتخارات او ملي استقلال روحیه ډېره پیاوړې او قوي ده، حي دغو صفتونو د **استاد** شعرونو ته زیات خوند او رنګ ورکړی دی، د اشعارو حماسي رنګ یې د دې د خلکو د شجاعت او زړه ورتوب نمایندګي کوي، **استاد** په یوه بل شعر کي حریت د ملت

زړه او د ملت ژوند په آزادۍ پوري تړلی ګڼي چې د سر بیت
یې دادی :

د مجنون ژوندون به څه چې لیلی مري
څه په کار دی تش کالبوت چې زړه د چا مري



د استاد روح دې د تل له پاره ښاد وي
د خنداړ که خوله بې تل زموږ په یاد وي





د سرڅېړونکي مرستیال
عبدالباري راشد

د اوس مهال د پوهنیز او پوهنتوني لویو استادانو له ډلې څخه د **ارواښاد او تللي استاد** علمي ژونګه او درېدنه په دې کښي وه چې :
هغوی نه یوازې د کړکېنس، ژبې او ادبیاتو په برخه کښي یو لوی پوه وّ، بلکې د دیني علومو، لکه : صرف او نحو، منطق، فقه شریفه او نورو پر مبادیو د یوه دیني عالم غوندې لاس برې وّ .

انا لله و انا الیه راجعون
د لوی ویر او ګروم په خر ګندونه سره





اکاډمیسنی ته کاندیده
دکتوره سامعه عبادي روشګر

**اکاډمیسین پوهاند رشاد** د افغانستان د علومو اکاډمی نوموتی استاد، نن زموږ په ټولنې کښي نسته، انسانان په پیدایښت او هستی ته په قدم ایښودلو سره نړۍ ته راځي او د سترګو په پټېدو سره د مړیني په غېږه کښي لغړي، د ژوند سره مخه کوي، او خاموشه کې کیږي .
ټوله پوهیږي چې د هیواد پوهان او څېړونکو د علمي سرېتوب په جوړونه کښي کلیدي رول او د پاملرني وړ ځای لرلی دی، د دې ډول علمي شخصیتونو وجود نه یوازې په هیواد کښي لوی ویاړ بلکې په سیمه او د نړۍ د فرهنګیانو په ډله کښي هم په ویاړ سره ثبت سوي دي .
**پوهاند رشاد صاحب** په اوسمهاله علمي او ادبي نړۍ کښي د هغو ګوته په شمار استادانو له ډلې څخه و چې د څېړنو او تحقیقاتو څخه یې هیواد، سیمه او نړیواله ټولنه برخمنه ده .
**پوهاند رشاد صاحب** پخپلو څېړنو، او لوړ بیه آثارو سره د هیواد تاریخ، ادب او فرهنګ ته بډاینه بخښلې ده، او د ادبي او علمي ځلېدونکو څېرو په توګه په هیواد او سیمه کښي ځلېدلی دی .
د **پوهاند صاحب** ځای زموږ په منځ کښي جسماً خالي دی، ولې په معنوي لحاظ د دغسې علمي او فرهنګي شخصیتونو ځای د ګران بیه او قیمتي آثارو په لرلو سره د څېړونکو، محققینو او د علم او قلم د څښتنانو په منځ کښي تلپاتې دی .

څه ښه به وي چې د **پوهاند صاحب** د چاپ سوو آثارو سربېره يې ناچاپه لاس ته راوړني چې په هغو کښې د دوی تاریخي، ادبي او علمي څېړه انځور ده د چاپ ښکلا تر لاسه او د څېړونکو تر لاسونو ورسيږي .

د دې مهربانه، بااحساسه او علمدوسته شخصيت اروا دې ښاده او برين جنت دې ځای سي .





**عبدالمجید بابی**

- دا چې علامه رشاد بابا د خپل پتمن ژوندانه زیاته برخه د دې لرغوني هیواد او دې مېړني اولس د لرغوني هویت د بیا څرگندتیا په لاره کښي په کار واچول .
- دا چې علامه رشاد بابا د خپل عالي او لوړ همت په برکت د خپلواکۍ د سپېڅلي چيغي هيبت او صفت ژوندی وساته .
- دا چې علامه رشاد بابا د پښتو ادب د بډايي زېرمي د بډاینې له پاره لا سترړیاوي وگاللې .
- دا چې علامه رشاد بابا د پښتو د سوچه ويیو د ژوندي ساتلو په لاره کښي د ليکنې د ځغاستي ډگر تود وساته .
- دا چې علامه رشاد بابا د پښتو ژبي له پاره د ژباړو لوېدلې بگړۍ بیا هسکه کړه .
- دا چې علامه رشاد بابا د تذکرو په ليکلو کښي د پښتو او پښتنو په لور ور وکتل .
- دا چې علامه رشاد بابا د ټولني د ناخوالو سمون ته د شعر درنې مرکې او پېغامونه ولېږل .
- دا چې علامه رشاد بابا خپل لوړ او پراخ ذهن د څېړنو د پیاوړتیا په لاره کښي وگماره .
- دا چې علامه رشاد بابا د انسان و مقام ته د ارزښت په درنو سترگو وکتل .
- دا چې علامه رشاد بابا د خواخوږیو خوږ رنگ د خپلي کرنلاري په قاموس کښي په درنتیا خوندي کړ .
- دا چې علامه رشاد بابا د هیواد پالني پر ورانه څېره باندي ښکلي گلان وشيندل .
- دا چې علامه رشاد بابا خپل کور او خپلي د ناستي درنه کوټه د ژوندي پوهنتون غوندي د پوهي او فيض په وېشلو روښانه وگرځول .
- دا چې علامه رشاد بابا په ژندانه کښي په ښه او بد د پوهېدو د مهاله په لوړ سر ښغه شمله او سپېڅلی زړه واوسېد .
- دا چې علامه رشاد بابا ښېگڼي په مينه وپاللې او هغه يې د معراج تر بريده ورسولې .
- دا چې علامه رشاد بابا د چا په وړاندي ککرۍ نه کړه کښته .
- دا چې علامه رشاد بابا چاته د غوښتني له پاره لاس ونه غځاوه .

- دا چي علامه رشاد بابا دا هیواد د ستر گو د پرانستو څخه د ستر گو تر پټېدو پوري د لوړ خوړو او دېرو ترخو سره سره د ځان استېدو له پاره پت او عزت وباله .
- دا چي علامه رشاد بابا د خپلو خلکو د ډیرو بدو روځو ناخوالي د هغوی تر څنگ او د هغوی سره یو ځای په پراخ زغم سره وزغملې .
- دا چي علامه رشاد بابا د ورین تندي پراخه او سپېځلې روڼا د هر چا په وړاندي وځلول .
- دا چي علامه رشاد بابا د پښتو د کلاوو غوندي د تقوا او پرهېز یوه درنه کلا وه .
- دا چي علامه رشاد بابا د یوه بشپړ شخصیت او سرېتوب یوه بېساري بېلگه وه .
- دا چي علامه رشاد بابا د درنو کتو،نازولو او قدر ور کولو بهانده چینه وه .
- دا چي علامه رشاد بابا جمال او کمال دواړه غېږ گ تر جمال او کماله ورسول .
- دا چي علامه رشاد بابا د هیواد او اولس له خوږه د سپېځلي زړه په خوږ خوږمن سو .
- دا چي علامه رشاد بابا د اولس د ناخوالو تر درانه پېټي لاندي د گڼ شمېر کړاوونو زغم ته د مرگ تر پولي اوږه ورکړه .
- او دا چي علامه رشاد بابا د پورته یادو سوو ښېگڼو غوندي د لسگونو او سلگونو نورو ښېگڼو یوه بشپړه نوراني څېره وه .

نو د یوې همداسي درانه، پتمن او ورسره منلي او وتلي څېرې د مړیني او جسمي بېلتون زیان په څو تړلو کلمو او کرښو کښي نه سي انځور کېدای .

زه یوازي دونده وایم چي :

ای د استادانو استاده !

ای لوی او ستر ښوونده !

ای د پوهانو پوهه !

ای د رښتینو علامهؤ په لړ کښي رښتین علامه !

ای د علمي باباگانو په قطار کښي رښتینې بابا !

ستاسو لوړو اخلاقو،

ستاسو عظمت،

ستاسو لویي،

ستاسو درنښت،

ستاسو نورانیت،

ستاسو پت او عزت،

ستاسو ورین تندي،

ستاسو زغم،

ستاسو لوی زړه،

ستاسو هسکي ککرۍ،

ستاسو انسان دوستۍ

ستاسو مېلمه پالني.
ستاسو هیوادپالني او بالآخره ستاسو پښتونولي ته چې د نورو ښکلاوو یوه بشپړه نړۍ ده سلام کوم، سر ورته ټیټوم او په درنښت یې نمانځم.
له دوعاوو مو نه هېروم.
لوی څښتن ج مو سپېڅلې اروا خوسه ولره!
یادونه مو تل درانه دراته اوسه!




**څېړونکی سید محی الدین هاشمي**

د **ارواښاد پوهاند اکاډمسین علامه عبدالشکور رشاد** د پوهې او علمیت پوړ که له یوې خوا له دې څخه جوتېږي چې د هیواد په لوړو علمي اکاډمیکو ارګانونو (پوهنتون ـ د علومو اکاډمۍ) د علمي رتبو په لړ کې تر وروستیو پوړونو (پوهاند ـ اکاډمسین) پورې په ډېر بریالیتوب رسېدلی و، نو له بلې خوا د هیواد او ان دا چې د سیمې او نړۍ د هیوادونو په ادبي او فرهنګي حلقو کې د ټولنیزو علومو د یو پیاوړي عالم په توګه له لوړ نامه او شهرت نه برخمن و.

لیکلو آثارو ته کتنه یې زموږ د دې ادعا ښه څرګندویې کولی سي. په عامه توګه د نړۍ په تاریخي مسایلو او په ځانګړې توګه د افغان او افغانستان د تاریخ په هکله استاد د ډېري ژورې او هر اړخیزې مطالعې او څېړنو له امله د داسې معلوماتي پانګې څښتن و چې په هیواد کې ساري په ډېر ندرت سره ښودلی سو.

**ارواښاد استاد** په عامه توګه د ادبیاتو، ادبپوهنې او د هغې د بېلابېلو څانګو (ادبي کره کتنې، ادبي تاریخ او ادبي تیوري) په اړه د ډېري لوړې پوهې او استعداد څخه برخمن و، په ځانګړې توګه په شعر پوهنه یا ادبي فنونو (بدیع، بیان، قافیه او عروضو) کې یې د هیواد په کچه ساري نه لیدل کېده.

د ژبپوهنې په برخه کې لوړه پوهه یې نه یوازې دا چې د هیواد د سیمې د ژبو برسېره د یو شمېر سیمه یزو ژبو او همدارنګه د ځینو نړیوالو ژبو (عربي، روسي، انګلیسي، جاپاني) د لرغوني اریایي ژبې سنسکریت په شمول د ژبو د زده کړې په برخه کې یې خارق العاده استعداد درلود، په مقایسوي ژبپوهنه او د لغاتو د ریښو په پېژندنه کې له ډېر پیاوړي استعداد څخه برخمن و.

د ټولنپوهنې په برخه کې نه یوازې دا چې له خپلې ټولنې، انسابو، کلتور او عنعناتو څخه یې ډېر ژور او هر اړخیز درک درلود، د سیمې او نړۍ د هیوادونو، ټولنو او خلکو په اړه یې ښه ژوره مطالعه درلوده.

لنډه دا چې د **ارواښاد علامه رشاد** پوهه، علمیت او د یو تاریخپوه، ادبپوه، ژبپوه او ټولنپوه په توګه د هغه هر اړخیز شخصیت او د معلوماتو او پوهې کچه او څرنګوالی د نوموړي استاد له لیکلو آثارو څخه ډېر ښه راڅرګندېدای سي.



**څېړونکی عبدالمتین متین**

زه له ۱۳۴۱ هـ ش کال څخه راهیسې تر ۱۳۴۶ هـ ش پورې په کابل پوهنتون کې د **پوهاند علامه رشاد صاحب** له شاګردانو څخه وم. کله چې په ۱۳۴۶ هـ ش کال د کابل پوهنتون څخه فارغ سوم، نو په همدغه کال د رحمن بابا په لېسه کې د

ښوونکي په دنده مقرر سوم . د درس او تدريس په موده کي د خپلو درسي ستونزو د حل له پاره استاد ته تلم راتلم، او له هغه ځخه مي د ادبياتو په پوهنځي کي خپل مشکلات حلول، له هغي ورځي ځخه مي د **استاد** تر مړيني پوري روابط ټينګ ساتلي وو، زه د خپل استاد **علامه رشاد صاحب** له پاره په علمي لحاظ بريد او حد نه سم ټاکلای، ځکه چي د هغه د علميت او پوهي دايره دومره پراخه او وسيع وه چي د خپل عصر او زماني په زياترو علومو يې برلاسي او حاکميت درلود، د هغه په تندي کي له کوچنيوالي ځخه ذهانت او علميت موجود و، ځکه چي په پنځه کلنی کي يې قرآن شريف ختم کړی و، ګلستان، بوستان او د فقهي کتابونه يې لوستي وو .

له پنځه کلنی ځخه وروسته کله چي ښوونځي ته داخل سو، نو د خپل لياقت او قابليت له کبله دومره مشهور سو چي د وخت نوميالی او غازي پاچا (امير امان الله خان) يې ليدلو ته راغی او مبارکي يې ورکړه .

**علامه رشاد صاحب** له (۹۰) ځخه زيات آثار ليکلي دي، چي دا په خپله د ده د علميت او پوهي ځرګندونه کوي . ده پښتنو او پښتو ادب ته يوه داسي ادبي ګرانبها ذخيره او پانګه پرېښووله، چي هغه به د تل له پاره زموږ د ادبي لاري ځراغ وي .

دا لاندي بيت چي خوشحال خان خټک د خپل ځان په باره کي ويلی و، د **استاد** په باره کي هم صدق کوي :

همېشه به پرې نـــــارې وي د بلبلو
دا چي ساز کړ نن خوشحال په ويل باغ





**عبدالکريم رحيمي طالب**

خدای بخښلی **اکاډميسين پوهاند رشاد صاحب** نه يوازي ادبي، علمي او فرهنګي ځلانده سخاوتمند لمر و، بلکي هغه اروابښاد د (انسان) د کلمې د عالي مفهوم د ټولو ښو صفاتو او ښېګڼو ممثل، د اسلام د حميده اخلاقو او سپېځلو مميزاتو ځښتن، د پښتو او پښتنوالي وياړلې جوغه وه، چي علاوه پر علمي تبحر يې هيوادپال ملي احساس، سياسي تقوا او سپېځلتيا لرل .

قوي حافظه او قوهٔ افاده، فکري نبوغ، د کلام فصاحت، بلاغت او صراحت د منطقي استدلال مطابق، نور عالي صفتونه وو چي د کائناتو ستر ځښتن ورته عطا کړي وو او د هغه درانه شخصيت ته يې دروندوالی ور په برخه کړی و . په لنډه توګه ويلای سم چي ددغه شان عالي ښېګڼو راغونډېدل په يوه شخص کښي په ډېر ندرت ليدل کيږي .

زه په داسي حال کښي چي د اروابښاد **پوهاند رشاد صاحب** سپېځلي روح ته درودونه وايم، د هيواد د دغه صادق خدمتګار فزيکي نسته والي، يوه نه جبرانېدونکې علمي او ادبي ضايعه بولم، خو د هغه علمي، ادبي او تاريخي ځېړني او ليکني به زموږ د فرهنګ تلپاتې غنا او شتمني وي چي د دوی ياد تل ژوندی ساتي ، روح دې ښاد وي :

**یوه کوچنوټې خاطره**

یوه ورځ چې استاد رشاد کندهار ته تشریف راوړی وُ، زه یې لیدني ته ورغلم . چې زه یې ولیدم په خندا یې راته وویل : "طالبه ! ته لا ته یې ملا سوی؟" ما ورته وویل :

ما غوندي کوټه ذهنه طالب چې شنکي خالونه یادوي. خدای خبر چې ملا کیږي به . . . !

ویې خندل یوه سو چې د طالب جان نقل ته یې موضوع راجع کړه .

**د ارواښاد رشاد صاحب په یاد**

استاد د استادانو چې ثاني د حبیبي وُ
د عصر پیر روسان او د زمان البیروني وُ
د پښتو پر ننګ ولاړ د وخت خوشحال وُ
د ختیځ بل نابغه د دې دوران بل سلجوقي وُ
محقق وُ، مؤرخ او ستر ادیب وُ
په عروض او قافیه کښې لا استاد تر خلیلي وُ
د اوو ادبي ستورو منظومه کښې
ارواښاد رشاد ځلاند لمر یقیني وُ
چې پښتو یې کړه پښتو په فرهنګي دود
هر تحقیق یې کتابي او هر دلیل یې منطقي وُ

د وخت او ځای د لړوالي له امله پورته څو بیته چې سمدستي د ارواښاد رشاد صاحب په یاد مي په ذهن کښې راوګرځېدل د کندهار مجلې محترمو لوستونکو ته مي هدیه کړل. ښایي وروسته هغه په یوه بشپړه قصیده مبدل سي .



**د علامه پوهاند عبدالشکور رشاد یوه بې ساري خاطره**

د غم دنیا د غم ژوندون دی
زه خوار په غم پکښې د غم ژړا کومه
(لنډۍ)

"ناڅاپه برغ د بېلتانه راباندي، د فاضل استاد پوهاند رشاد وسو. زه په ویر سوم اک اریان او هېښ پاته. ما وې چې فرهنګ د ټول جهان مړ سو .



له شک پرته استاد لوی فرهنګیالی و، څکه خوارکی منګل په عجز وایي دا مهال په فرهنګ د پښتنانه کې. نن زموږ دوهم خوشحال بابا مړ سو" .



**علي محمد منګل**

ارواښاد اکاډمسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد د پښتو د معاصر ادب د بې ساري ستر نهضت په ګلورین، سمسور او شېرازه بڼ کي هغه ستر، بېجوړې لیکوال، ادیب، ژبپوهاند، تاریخپوه، د نوي فکر نوښتګر شاعر او نومیالی ستر څېړنپوه و چې مثال یې له اباسین څخه تر آمو، له بلوچستان څخه تر کوټې پوري د بر لر لیدل کیږي .

**استاد** خپل شعر او ادب یوازي او یوازي د ادب له پاره نه وکښلی، بلکي ده د ادب د ژوند د نیمگړتیاوو د بشپړېدو له پاره را هست او ایجاد کړی و، او په دې وسیله یې پښتو ادب د ۶۵ کلونو په اوږده بهیر کي له ډېرو خواوو او بعدونو څخه ښه را وځلاوه چي حاصل یې ۳۲ ټوکه چاپي او ۶۸ ټوکه ناچاپ غوره آثار گڼلای سو، چي ستره جلوه او ځلا به یې تلپاته او همېشني وي . . .

زه د **فاضل استاد اکاډمسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** د سوونو شاگردانو په لړ کي د ده د یوه داسي شاگرد ویاړ لرم چي نه پوهېږم، **ستر استاد** له څلو پښتو کالو راهسي ما پېژند، د پلار په شان راته گران و، دی ښېله شکه یو ستر پښتون، دروند مشر او بې جوړې عالم و، د پښتو متل دی وایي : "چي وسي له موره ور به سي تر گوره".

مرگ حق دی، **استاد رشاد** د نور بشر په شان د مرگ له پاره پیدا سوی و، الله ﷻ دي زموږ دغه **علامه استاد** و بخښي، ارواښاد یې ښاده . خو د ده په مرگ زه څکه ډېر خواشینی یم او ژاړم چي دی له شک پرته یو بې ساري ستر او لوی عالم و، او له دې، سره پر خپل ټبر، هیواد او افغان ولس مین ستر پښتون و، پنځلس کاله دمخه یې د خپلې هیوادپالنې یوه خاطره چي ما ترې وپوښتل راته په درنه ادبي ژبه او موسکا بیان کړه چي څو ژوندی یم، د ده د هیواد پالني او ولس سره د میني دغه ستره خاطره به مي په یاد کي ژوندۍ پاته وي، دا څکه چي **علامه استاد رشاد** د خپل گران وطن افغانستان او افغان ولس د نېکبختۍ، سعادت، آبادۍ او ودانۍ له پاره ډېر لوړ احساس او ستر فکر درلود، د هغې میني له مخي چي ده د خپلي خاورې او ولس سره درلوده، په گران هیواد کي د دوه نیمو لسیزو د سختو شرایطو په راتلو سره چي زموږ مېړنی افغان ولس ورسره مخامخ و او زموږ خاوره یې ډېره ناآرامه کړې وه، **علامه پوهاند رشاد** د یو مېړني پښتون او ننگیالي افغان په څېر دلې شپې سبا کولې، سره له دې چي د ډېرو باندنیو هیوادونو پوهنتونونو او اکاډمیو ده ته په مینه بلنه ور کړه، چي هلته ولاړ سي، نو په ستره علمي دنده به وگومارل سي، خو **ستر فاضل استاد پوهاند رشاد** د یوه سپېڅلي او مېړني پښتون او افغان په څېر د خپل وطن او ولس سره زیاته مینه وه، دا بلنه او غوښتنه یې ونه منله او د خپل وطن او افغان ولس په مینه کي د مرگ تر شپې پوري یې پلارنی هیواد جنت نشان باله . . . .

د گران هیواد خاوره چي د سره تنور او سرې تبې په شان سره گرځېدلې وه او هېڅا پکښي د اوسېدو او هستوگني طاقت نه درلود، **پوهاند علامه رشاد** له هغه راحت څخه چي په باندنیو هیوادو کي ده ته حاصل، تیار او آمده و خپله خاوره، زړه د خاورو او خټو جونگړه او کوډله ډېره ښه وگڼله، دا کومه د خیال خبره نه ده چي زه یې له خانه څخه کوم، څکه دا یو حقیقت او زما د ستر گو لیدلی حال او خاطره ده چي له **درانه استاد** څخه مي پوښتلي دي :

گران او مهربان **استاد علامه رشاد** زما د پوښتني په ځواب کي راته وویل :

"ای منگله ! زما زامن او اولاده په بهرنیو هیوادو کي اوسي او د ژوندانه ښې شپې او دوران یې په برخه دی، زه څو واري جاپان ته د تداوی او لیدو له پاره ورغلم، هغه راته وویل چي : ای پلاره ! په افغانستان کي هورې ته په دغه سره اور کي څه کوې؟

نو ای منگله ! ما په خواب کي هغو ته وویل . ای گرانو خوانانو قربان مو سم، زه یو پښتون یم، افغان یم، د پلار او نیکه ټاټوبی مي افغانستان دی، د هغو هډونه هورې ښخ سوي دي، زه له هغو زیات نه یم، که مړ سم په خپله خاوره کي به مړ سم، زما هډونه به پکښي خوشحاله اوآرام وي، زه به له مر گ څخه چیري وتښتم؟ مر گ هر چیري راسره دی، دا مي هم ورته وویل چي : زه مسلمان یم، په دغه اوړ کي چي زموږ په هیواد کي د فرعونیانو له خوا بل سوی دی او ډیر افغانان پکښي وسول او ورسره مخامخ دي، خدای لوی دی ما (رشاد) او نور افغانان به د ابراهیم ﷺ غوندي پکښي وساتي . دا مي چي خپلو زامنو ته وویل، هغو قناعت وکړ او ماته یې وویل چي ای پلاره ! او بابا ستا خپل اختیار دی، ته چي د وطن او افغان مېړني، توریالي او ننگیالي ولس سره مینه لري، الله ﷻ دي د ټولو افغانانو سره هورې وساته او الله ﷻ دي زموږ په گران هیواد کي امن او هوساینه راولي چي ټول افغانان له پردېسۍ څخه خلاص سي او په خپل وطن کي د عزت او درنښت ژوند وکړي ..."

اوس جوته سوه چي د **درانه استاد علامه پوهاند رشاد** له خپل گران وطن افغانستان او افغان ننگیالي او مېړني ولس سره ډېره مینه وه، د وطن له آزادۍ سره یې بیخي زیاته مینه وه، د وطن د آزادۍ مینه ده په خپل یوه خواږه شعر کي په ډېره رنگینه جلوه، خلا او تشبیهاتو کي ژوره هر اړخیزه په لوړ بیان ادا کړې ده، څه ښه وایي چي د **استاد** د دغي خاطرې د لمنې او پایلي زیږ گل به سي :

**حریت**

د مجـــنون ژوندون به څـــه وي چي لیلا مري؟
څه په کار دی تش کالبوت چي زړه د چا مري؟
زړه ډېـــوه ده داد خـــتو په قـــالب کي
خـــدای دي مـــکړه چي به دا ډېوه د چا مري
چـــي مرغه ولاړ ســـي قفس د مــــاتېدو دی
کـــه به زړه مري، تش کو گل دي لا پخوا مري
هـــیڅ ممـــکن نه دی پـــایښت د هغه پرې
زړه چـــي مري کالبوت مجبور دی خامخا مري
"**حـــــریت**" د هـــر ملت د بـــدن زړه دی
که دا نـــه وي، هـــم ملت مري، هـــم بقا مري

**(اروابناد رشاد)**

د **علامه استاد رشاد** په ویر کي به زه خوار کی په نیمگړې پوهه او مات گوډ قلم ایله دومره ووایم چي :

**ژړا راځي**

گرانو هیوادوالو !
د فرهنگ مینه والو !
په خدای پرو، ماته ژړا راځي
څکه دلته پښتو سمندر وچ سو،
دلته د پښتو بڼ خزان سو،
دلته د پښتو ادب څلا ورکه سوه،

دلته د پښتو ادب نغری سوړ سو.
دلته د پوهنتونکو د خوابونو غولی وران سو.
دلته ادبي محفلونه له پر تمه پر بوتل.
دلته پښتو فرهنگ مړاوی سو.
دلته نړیوال تاریخ شنډ سو.
دلته د پوهې څراغ مړ سو.
دلته د لمر رڼا ولوېده. تور تم سو.
زه ړوند سوم.
هو کې!
زموږ کور.
زموږ کلي.
زموږ مدرسه.
زموږ پوهنځی.
زموږ پوهنتون. وران سول.
دغه خوار کي طالبان به چیري؟
د علم په طلب پسي گرځي؟
نو په خدایږو ماته ژړا راځي.



## د اکاډمسین پوهاند رشاد خای به تر پېړیو پېړیو خالي وي



**د سرخېړونکي مرستیال حضرت محمد ویاړ**

د لـــندو خټو دارو لـــــړي اوبه وې
ازمایې راباندي دومره زور پر څه؟

نه پوهېږم چي سږنی کال موږ څنگه له بې کچو خواشینیو سره مخامخ کړو؟ د **ارواښاد اکاډمسین پوهاند صاحب رشاد** مړینه یادوم. د **ارواښاد استاد رشاد** له نوم او شخصیت سره زه د خپلو استادانو د لاري د ښوونځي په دوره کي (۴۰)کاله مخکي اشنا سوی وم. کومو چي موږ ته یې د لېسې په دوره کي د ادبیاتو زده کړه کوله، هغوی به د ارواښاد **رشاد صاحب** د پوهي، پیاوړي حافظې، لوړ شخصیت او انساني کرکټر په اړوند راته زیاتي کیسې کولې. کله مو چي بیا د پوهنتون دوره پیل سوه له نېکه مرغه چي خپله مو له ده سره لیدنه وسوه. نو هغه څه مو چي په پخوا کي اورېدلي وو کټ مټ راته په اثبات ورسېدل، یعني د شاگردانو سره ډېر صمیمي. په ټاکلي وخت به ټولگي ته راته او د درس په څنگ کي به یې نور اړوند معلومات راته ښوول او زده کوونکي به یې زیاتره دې ته هڅول چي د خپل چاپېریال څخه داسي تاریخي، ادبي او نور توکي راټول کړي چي له ورکېدو بچ پاته سي، تر څو د موږخینو او فرهنگیانو په ښه ورسي. او همدرانگه د خپل هیواد پر تاریخ او جغرافیه یې پوهاوی حتمي گاڼه. نوموړي به زموږ سوالونو او معلوماتو ته ډېر ارزښت ورکاوه، په ورین تندي به یې ځوابول. او همدارنگه د پوهنتوني زده کړو وروسته دایمي دندي پر مهال په ځانگړي ډول د څېړنو په بهیر کي یې

موږ ته داسي لارښووني کړي دي چي په علمي ژوند کي به تل زموږ له پاره د لارې مشعل وي .

**اروابناد اکاډمسین پوهاند علامه رشاد** خپل ارزښتناک عمر د هیواد د بچیانو په روزنه او پالنه کي تېر کړ، د ادب او تاریخ په برخو کي يې معتبر آثار موږ ته په میراث راپرېښوول. خو له بده مرغه د پوهني په ساحه کي به د ده ځای تر پېړیو پېړیو خالي وي .

اروا دې ښاده وي





**خېړونکې عاطفه نورستانی**

**د اروابناد "علامه" اکاډمسین پوهاند رشاد یاد**
**د نورستاني ژبي په یوه منظومه ویرنه کي**

انـــــــار آش انـــــــار آش
اوگانســـــتانه پــــه ســـو انـــار آش

نــــه پــــر مشــــبه لــــومش کيــــوی
ترمشــــورِه وينــــــاس آنـــــار آش

تــــــو اوړش بتــــــه ســــــيم
نــــــه ديلـــــوش بتـــــه ســـــيم

تــــــاتی اوش بتــــــه ســـــــيم
کــــــود او کــــــود اوی ديســــــم

اومــــــه بــــــورو بــــــه ميلــــــو
تــــــو اکــــــين چيلــــــبم بتــــــه ســــــيم

تــــــو امــــــی ســــــبک کرالــــــه
تــــــو امــــــی پونــــــت والــــــه

کيتــــــی کــــــار تاســــــم
توبــــه گــــران ميلــــه اکــــار نــــه ديســــی

کيتــــــی تــــــو پينبــــــام
کيــــــوی دی تــــــو نــــــه لاســــــم

اومــــــه زو دېــــــژ بيــــــی
تــــــو چتراســــــته کتــــــاب الچنــــــه خــــــم

امــــــی مــــــرو موشــــــه مــــــيش
نــــــه ری داونــــــی تيســــــی

## پښتو ژباړه

پــه یاد بــړي مــي، پــه یاد بــړي مــي
د افغانســتان لمــره، پــه یاد بــړي مــي

هيڅکلــــه دي نــــه هېــــروو
د تيــــارو رڼــــا، پــــه یاد بــــړي مــــي

مــــا گومــــان کــــاوه تــــه بــــه يــــې
مــــا گومــــا کــــاوه تــــه بــــه نــــه ځــــې

مــا گومــان کــاوه تــه مــي پــلار يــې
پــوهنتني، پــوهنتني بــه مــي کــولې

د خپــــل زړه خبــــره مــــي
غوښتــــل تــــا تــــه ووايــــم

تــــا مــــوږ تــــه ســــبق راکــــاوه
تــــا مــــوږ تــــه لارښوونــــه کولــــه

هــــر څــــو چــــي غــــوږ ږدم
ستا ښکلي خبري مي غوږ ته نه راځي

هــــر څــــومره چــــي تــــا لټــــوم
هــــيڅ چيــــري تــــا نــــه ســــم مونــــدلای

زړه مــــــي اور اخلــــــي
چــــي ســــتا ليکلــــي کتابونــــه گــــورم

مــــوږ مرگــــي وغولولــــو
اوس آرام نــــــه راځــــــي





**عبدالقیوم مشوانی**

د **ارواښاد اکاډمیسین پوهاند علامه رشاد** غوندي ستر شخصیت او یا د هغه د علمیت، تاریخپوهني، ادبپوهني، ژبپوهني او ټولنپوهني په اړه نیم مخ کاغذ تورول د هغې ستري هستی سپکاوی گڼم. بویه چي په ټولیزه توگه د هغه د علمیت او شخصیت د څېړني له پاره د یوې منظمي او مجهزي اکاډمی په چوکاټ کي خورا اوږدې او پرله پسې څېړني وسي. شخصیت علمیت، اسلامیت او پښتونولي د ارواښاد **پوهاند علامه رشاد** هغه څلور گوني ځانگړني وې چي هغه یې د افغاني پوهانو په کتار کي لکه لمر هسي وځلاوه.

په لنډه توگه ویلای سم چي ارواښاد **پوهاند علامه رشاد** د کندهار ویاړ نه و، د پښتون ویاړ نه و، د افغان او افغانستان ویاړ نه و، بلکي هغه د ختیځ والو او مسلمانانو، خو په ځانگړي ډول د افغان ملت او افغانستان ویاړ و. باید چي په یوه کوچنی جغرافیوي سیمه او یو کوچني توکمیز ټبر کي د هغې ستري هستی د راښکېلولو هڅه ونه کړو. خدای مه کړه چي په دې ډول د هغه علمي، خیرکه، بشاشه او خواخوږې اورا خواشیني نه کړو.

اروا یې ښاده او گور یې له انوارو ډک



**څېړونکی بخت محمد بختیار**

د ستر یوه **اکاډمسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** د علمي شخصیت په هکله د نظر څرگندول او ارزونه ډېرو علمي سیمینارونو او علمي څېړنو ته اړتیا لري، تر څو دا موضوع تر یوه حده روښانه کړي. هر هغه څه چي د دې پاڼو په ترڅ کي راټولیږي. هغه به د نوموړي استاد په باره کي د ده د شاگردانو، خپلوانو او علاقمندانو خاطرې او یادون وي، چي بیا به هم کمی او نیمگړ تیاوي ولري.

متأسفانه چي ماته د **استاد** سره د نژدې پېژندگلوی ویاړ نه دی را په برخه سوی، ولي چي خیني علمي سیمینارونو کي د هغوی هر اړخیزې عالمانه خبري او ویناوو زه تر خپل اغېز لاندي راوستی یم. او په دې باندي یې باوري کړی یم چي هغوی تر هر څه دمخه **لوی استاد** و. زما په نظر د **استاد** لقب تر هر یو بل لقب څخه ډېر لوړ دی، چي **پوهاند صاحب** تر لاسه کړی دی.

په دې هیله چي د **لوی استاد** ناچاپ سوي آثار ضایع نه سي او په راتلونکي کي د هغو او د **استاد** د علمي، فرهنگي او . . . شخصیت په هکله زیاتي علمي څېړني وسي، دوی ته د الله ﷻ له دربار څخه د مغفرت او لوړ مقام هیله او دعا کوو.

اروا دې ښاده وي



د کندهار مجلې محترمي ادارې ته!

د **اکاډمسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** رح پر علمي ژوندانه باندي د هغه د یوه شاگرد له خوا څه لیکل او د هغه د علمیت کچه څرگندول زما تر توان او د دغه وړو کي کاغذ تر حدود زیاته او گرانه خبره ده.

زه چي څو کاله د محترم **استاد** شاگرد پاته سوی یم، او د کال په پای کي مي د کامیابی ښې نومرې ورڅخه تر لاسه کړې دي، تر هغه وروسته هم د علمي عملي کار په برخه کي د ده لارښووني زما له پاره ډېري د قدر وړ وې. د خپلي سرمحققی



**سرڅېړونکی نعمت الله اندړ**

تر علمي رتبي پوري رسېدل که څه هم زما هڅه ده، زياته د ده هڅونه او تشويق ګڼم .

ښه مي ياد ته راځي کله چي ما د زابل په اړه مونوګراف وليکه، د ارزوني په اړه مي **استاد** ته وړاندي کړ، هغه داسي هڅونکی نظر ورباندي وليکه چي زه يې کله چي اوس نيمګړ تياوو ته متوجه کېږم حيران پاته کېږم .

**استاد** خورا پراخ او ښه نظر نه يوازي د خپلو شاګردانو په اړه درلود بلکي د ده د پوهي او د علم د لېږدوني په اړه پراخ نظر د هر چا په وړاندي په مساوي توګه، پر ټولو لکه د پلار په شان مهربانه او په پراخه اندازه وايه . کله چي ما د **استاد** مثبت نظر وليده ماته دا هڅه پيدا سوه چي په ليکنه پيل وکړم، زما د ناځيزه قلم او ليکني بر کت د **استاد** هڅونه ګڼم .

د ادب د بېلابېلو پوهنو په اړوند **استاد** دومره پوهه او معلومات درلود چي ارزيابي يې زما تر سويې لوړه خبره ده . زما يوه ښه خاطره دا ده : د افغانستان د اسلامي حکومت د رئيس سره تر ملاقات وروسته د يو چا له خوا هغه ته ور پېژندل کېدو، په هغه وخت کي يې د کنايې په توګه وويل : سرمحقق اندړ د **پوهاند صاحب** وفاداره شاګرد دی، ده سمدلاسه د خندا نه په ډکه خوله وويل : "اندړ زما وفادار شاګرد نه، بلکي ښه شاګرد دی" .



## سرڅېړونکی دکتور محمدعلم اسحاقزی

محترم **اکاډمسين عبدالشکور رشاد** د هيواد او سيمي يو علمي، فرهنګي او ملي شخصيت وُ، **عالقيدر رشاد** د پرغلګرو او د هغوی د سياسي کړنلارو سره د هيواد په دننه کي سخت مخالف وُ .

**لوی استاد** په هيواد او سيمه کي ټولو فرهنګيانو، علمي او ملي اشخاصو ته د قدر وړ استاد وُ، همدارنګه د بشري علومو په څانګه کي ټولو محققينو ته د يو ژوندي او بااعتباره دايره المعارف په حيث علمي او تحقيقي مشورې ورکولې .

**علامه استاد** يو زړه سواندی، زړه ور او د لوړ شهامت خاوند وُ .

**علامه استاد رشاد** په ملي او نړيوال ډګر کي د علمي وړتيا له حيثه يو پېژندل سوی شخصيت دی چي د سيمي ټول علمي او فرهنګي اشخاص د ده په نوم وياړي . **علامه رشاد** د هيواد په علمي او تحقيقي سيمينارونو کي د يو لارښود په صفت علمي نظريات وړاندي کړي دي، چي د هيواد و ټولو علمي او فرهنګي اشخاصو ته د قدر دي .

روح دې ښاد وي





**ولسپال**

## د شرق لمر پرېووت

چي یې تللم په خندا خندا دیدن ته
اوس یې درومم په ژړا ژړا مـزار ته

کله چي سهار پر اتو بجو دفتر ورسېدم ملګري څوک راغلي وو. څوک د راتګ په حال کي وو. چي یوه کس وویل: **استاد** بېګاه شپه په څلور سوه بستریز روغتون کي بستر سوی دی، موږ ټول ملګري په دې تکل کي وو چي د **استاد** پوښتني ته ورسو، پر دوولس بجو مو ډوډۍ وخوړه او په چای څښلو لګیا و، چي پر یوه بجه د ګران ورور حبیب الله رفیع له خوا تلیفون راوسو چي **د شرق لمر پوه استاد پوهاند عبدالشکور رشاد** له دې نابودي نړۍ څخه د تل له پاره سترګي پټي کړې .

ټول هک حیران ودرېدو او د ویر ټغر راباندي ویړ سو. په خپلو منځو کي مو وویل د خدای په لوی جهان کي یو **استاد** را پاته سو هغه هم له موږ څخه مرور ولاړ . خو ماته دالندې را یاده سوه :

که غم له غمه شرمېدلای
پر موږ به نه راتلل جوړه جوړه غمونه

د **استاد** د ویرژلي غم نه دوې ورځي مخکي د پوهني د پیاوړي وزیر علي احمد پوپل جنازه له المان څخه کابل ته راورسېده، ټول ملت یې په ویر کي ډوب کړ، ځکه علي احمد پوپل هغه ملي شخصیت ،د پوهني ستر سالار و چي د پوهي رڼا یې د افغانستان ګوټ ګوټ ته ورسوله او زموږ د هیواد ټولي خواوي یې رڼا کړې . خو د دې ستر مېړه کور د تنظیمي جګړو په لړ کي غلبېل غلبېل سو او ټوله شتمني یې د کتابتون په شمول د غلو او داړه مارو له خوا لوټ او د هیواد دا ستر نومیالی د هیواد پرېښودو ته مجبور سو . له خان سره مي وویل چي د پوهني پیاوړی وزیر علي احمد پوپل خو له موږ ولاړ او سترګي یې پټي کړې خو په دې مي ځان ته تسلي ورکړه چي خدایه د **استاد** عمر اوږد کړې، هغه خو انشاء الله صحتمند دی، هغه دي زموږ سره ژوندی وي زموږ تسلي ورباندي کیږي .

څه خبر وو چي خدای ﷻ خپل کار کوي . د دې ویرجن خبر په اورېدو سره هغه هیلي او امیدونه مو چي درلودل هغه هم له خاورو سره خاوري او خوږ ژبی **استاد** له موږ څخه د تل له پاره پردېس سو .

**پوهاند اکاډمسین علامه عبدالشکور رشاد** هغه ځلاند لمر و، چي په خپلو وړانګو یې د هیواد ګوټ ګوټ رڼا کړی و، داسي څوک به نه وي چي د ده د رڼا له فیضه یې برخه نه وي بېله کړې . مدام به یې د څراغ په شان رڼا کوله او د ده څلور خوا به د ده د علم او پوهي مینه وال او شاګردان د پتنګانو په شان پر ده باندي راټول وو او د خپلو مشکلاتو د حلولو هڅه به یې کوله .

**مهربان استاد** به کله کله چي د یوه موضوع په هکله څېړنیزه وینا کوله هر چا به داسي فکر کاوه چي **پیاوړی استاد** پر همغه مهال حاضر و، او دا موضوع یې پخپلو سترګو لیدلې او د ده په وړاندي تېره سوې ده، ټول کسان به د ده خبرو ته هک حیران پاته سول . **مهربان استاد** د ټولو دوستانو، شاګردانو په زړونو کي ځای نیولی و، کله به چي چا پوښتنه ځني وکړه هغه به د هر چا په وړاندي داسي ځواب

ووایه چي پوښتنه کوونکي به په دې گومان سو چي **استاد** ته زه ډېر منلی او ډېر وربانديې گران یم . خو کله به چي بل شاگرد پوښتنه ځني وکړه هغه ته به یې هم پخپله خوږه ژبه له مخکیني شاگرد سره ځواب ووایه. هغه به گومان وکړ چي استاد ته زه ډېر گران او ډېر ورنژدې یم .

**استاد** پر پښتو او پښتنو مین انسان و، او هر وخت به د دوی د ویرژلي حالت په غم کي ډوب و او دا سوچ به یې کاوه چي خدایه د پښتنو دا بد حالت به کله سمیږي؟ د دوی ژبه به کله پرمختگ کوي؟

**استاد** د پرش کلنو غمیزو ډېر پرېشان کړ او هره ورځ به یې له ستر گو اوښکي توئېدلې او د وطن پر بد حالت به یې ژړل. خو بیا هم لکه د غره په شان محکم ولاړ و .

زه د **استاد** د هغو شاگردان له ډلي څخه یم چي دده کور ته مي ډېر تگ راتگ کاوه او د ده له حاله به مي ځان خبراوه. کله چي امریکائیانو د طالبانو د ټکولو له پاره بدې راونغښتې او د هغوی د ښړلو له پاره یې د (ب ۵۲) بمبارد پیل کړ . د خیرخانې مېنې اوله برخه هغه سیمه وه چي د **استاد** کور پکښي واقع او زورور بمبارد وربانديې روان و .

په زړه کي مي وگرځېدل چي بمبارد ډېر سخت دی لومړۍ برخه به یې ټوله ورانه کړې وي خو د **استاد** کور به پکښي په کنډواله بدل سوی وي. ومي غوښتل چي د **استاد** د پوښتني گروېږني له پاره د ده کور ته ځان ورورسوم .

په خپل کور کي مي وویل چي د **استاد** د کور چارچاپېره سخت بمبارد روان دی غواړم د **استاد** پوښتني ته ورسم، د کور خلکو راته وویل : پر تا به بم وغورځي مه ورځه . ما ورته وویل : په هر ډول چي کیږي د **استاد** پوښتنه ضرور ده، هغه و چي ور روان سوم. کله به په یوه کوڅه ننوتم. کله په بله .آخر دا چي د **استاد** کور ته مي ځان ور ورساوه. دروازه مي ټک ټک کړه د **استاد** نازولي لور دروازه راخلاصه کړه .

کله چي د **استاد** کوټې ته ورغلم. گورم چي **استاد** لیکنه کوي او زما د رغ په اورېدو سره را جگ سو او سترې مه سې یې راسره وکړه . پوښتنه مي ځني وکړه **استاده** بمبارد په خیر تېر سو؟ ویې ویل : ولسپاله ! خدای راسره مل دی. روغ جوړ یم او دا قصیده مي لیکله .

قصیده یې ماته راکړه چي ومي لیده ډېره اوږده خوندوره قصیده یې لیکلې وه او د بمباردمان ټول حالت، وراني او ویجاړې یې پکښي ذکر کړې وې .

**استاد** د پښتنو پر ویاړلو ننگیالیو فرهنگیالیو مشرانو ډېر مین و او هر وخت به یې د هغوی د خدمت، مېړانې، وطن دوستی، غیرت ستاینه کوله. له ورځو نه یوه ورځ د ده په اطاق کي ډېر کسان ناست وو. د فرهنگیانو مشرانو د ستاینو بحث پیل سو **استاد** هم د خپلو ننگیالیو او فرهنگیالیو مشرانو په برخه کي ډېري خبري وکړې خو په زغرده یې وویل : پښتانه باید د دې درو کسانو بېقدري و نه کړي چي هغوی د خپل ملت، خپلي خاوري او خپلي ژبې له پاره یې نه ستړي کېدونکي هلي ځلي کړې دي . هغه کسان عبارت له ارواښاد وزیر محمد گل خان مومند، ارواښاد شېرخان خروټي او ارواښاد غلام محمد فرهاد څخه دي، چي هر پښتون باید د دوی په کارونو او کارنامو وویاړي، او فخر پرې وکړي .

لنډه دا چې نن ورځ **پوه استاد** جسماً له موږ سره نسته خو په حقيقت کې هره لحظه، هره شېبه استاد زموږ سره خبرې کوي، او خوږ مجلس يې پيل کړی دی ، دا د پوه **استاد** هغه خواږه مجلسونه، ادبي بحثونه او د وطن دوستۍ درسونه دي چې موږ يې پخپلو يادداشتونو کې کې ثبت کړي دي، خو دومره به ووايم :

په چا به کور کلي ورانيږي

په چا ورانيږي ليري ليري وطنونه

د استاد روح دې ښاد وي

✲✲✲✲✲

سرڅېړونکی ميراحمد ګوربز

**لوی استاد ارواښاد عبدالشکور رشاد** د ۱۳۴۶ ل کال نه د ۱۳۴۸ ل کال تر پايه پورې د کابل پوهنتون د ادبياتو په پوهنځي کې زموږ د بديع، بيان او عروضو استاد و، نه يوازې په پوهنځي کې زموږ **استاد** و بلکې تر څو چې ژوندی و، زموږ څه چې د ډېرو روڼ اندو **استاد** و . د ده د دوهم پوړ اوږده کوټه به د سهار د اوو بجو نه تر ماښام تياره پورې د روښنفکرانو او روڼ اندو ډکه وه . د **ارواښاد استاد** نه هر سړی په روڼ سره د خپلو تاريخي، ادبي، ژبني او نورو مختلفو موضوعګانو د ستونزو په باره کې پوښتنې کولې . **استاد** به د هر سړي پوښتنې ته په ورين تندي ځواب ورکاوه . د **استاد رشاد صاحب** په کور کې همېشه د روڼ اندو دا حال و . په پوره ډاډ سره ويلای سم چې **د ارواښاد استاد** کور د ټولو ټولنيزو علومو د ناروغانو د درملنې کتنځی و .

دا طبيعي خبره ده چې د سړي عمر تر پنځوسو کالو تېر سي ډېر شيان يې په حافظه کې نه پاته کيږي، د **ارواښاد استاد رشاد** حافظه داسې نه وه، اويا کاله مخکې چې به يې څه شی له نظره تېر سوی وو او يا به يې لوستي او اورېدلي وه هغه به کټ مټ د ده په ياد وه . د ټولو پوښتنه کوونکو ځوابونه يې په ډېر دقيق صورت او بشپړه توګه ځوابول . د ده حافظې ته ټو ل اورېدونکي حيران پاته کېدل .

کله چې به د ده د کور نه راووتل په خپلو منځو کې به يې يوه او بل ته ويل : **شاد صاحب** کمپيوټري حافظه لري، بل به پر راوغورځېده د **رشاد صاحب** حافظه د لويې انسايکلوپيډيا بڼه لري . که د **ارواښاد رشاد صاحب** حافظې ته د يوويشتمې پېړۍ کمپيوټر او انسايکلوپيډيا ووايو قطعاً مبالغه نه ده .

د دې څرګنده بېلګه دا ده، چې : **ارواښاد استاد** سل خپلواک چاپ او ناچاپ آثار لري . د مقالو او مصاحبو دقيق شمېر يې چاته نه دی معلوم . زما په اند د ده د ويناوو او مقالو شمېر به تر زرو پورې ورسيږي . بايد ووايم چې د ده خپلواک آثار هر يو د دوو سوو پاڼو نه نيولې تر يو نيم زرو پاڼو پورې رسيږي . که د **ارواښاد استاد** درې اتيا کلونو عمر پر شپو او ورځو ووېشو او بيا د ده د ټولو آثارو پاڼې وشمېرو، دا به په ډاګه سي چې د **ارواښاد رشاد صاحب** د خپل عمر د ورځو نه زيات کار کړی دی . چې په جهان کې به د داسې ليکوال او پوه بېلګه څوک پيدا نه کړي . نو ځکه موږ ده ته بحرالعلوم ويلای سو .

په پای کې د افغانستان دولت اړونده چارواکو ته پیشنهاد کوم چې دولتي چارواکي خو د **ارواښاد رشاد** په ژوند کې دا کار ونکړ، د **ارواښاد** د مړيني څخه وروسته دې د **ارواښاد رشاد** د ټولو آثارو د لندې يادوني او پيژندني سره يو هغه څانګړې او بکر اثر د نړۍ والي نوبل ادبي جايزې ته وړاندې کړي. په دې برخه کې د **ارواښاد رشاد صاحب** د ډيرو پوهو او ملي شخصيته زامنو هلې ځلې بيخې اړينې دي. او زه دا دنده دوی ته سپارم، زه پوره باور لرم چې دا وياړ به د **ارواښاد رشاد صاحب** نه وروسته د افغانانو په برخه سي.

لوی خدای دې پر ورحميږي



## د همت ترون

میرا جان همکار

له هغه ځايه چې په ننني نړۍ کښې د ملتونو او ملکونو د عزت او مقام درجه د اقتصادي او ټولنيزو پرمختګونو پر معيار ولاړه ده او لکه څنګه چې جوته ده، علم او تکنولوژي ده چې اقتصادي او اجتماعي وړتيا تامينوي، نو ځکه پوهان او عالمان په دې بهير کې ټاکنده رول لوبوي او د دې غورځنګ علم برداران دي.

په اوسنۍ زمانه کښې هر هغه هيواد کوم چې پوهانو او څېړونکو ته ځانګړې موقف او موقعيت وقفوي د نړۍ په سطحه تر ټولو د انکشاف او پرمختګ په لوړو پوړيو کې قرار لري.

ځکه دې ډول هيوادونو د علم او تکنالوژۍ له برکته هر څه تر لاسه کړي دي او د دوی د ولسونو د ژوندانه په هره برخه کښې مثبت اثرات تر ستر ګو کيږي.

همدغه وجه ده چې د دې ټولنو، دولتونو او خلکو په شريک ډول عالمان او پوهان پالي او په درنه سترګه ورته ګوري او د هغوی د ښه پرمختګ لپاره مناسب وسايل او امکانات برابروي تر څو وکولای سي نوي او پرمختللي لاسته راوړني ولري.

خو له بده مرغه په وروسته پاته هيوادونو کښې نه دولتونه او نه هم خلک علم او پوهي ته ارزښت ورکوي. بلکې برعکس پوهان او عالمان د ټولني تر ټولو خوار او درمانده خلک دي، کوم چې د خپل کمال د وړاندي کولو لپاره د څو ورقو د خپرولو توان نه لري.

همدغه علت دی چې د دې هيوادونو پوهان او عالمان پر مختللو ملکوته کړې او دغه حالت ته د "مغزونو تښته" وايي چې په نتيجه کښې وروسته پاته هيوادونه د يو لوی فقر يعني د علم او علماوو د فقر سره مخامخ کيږي او دا مسئله لا د دې خوارو ملکونو د پسمانی لامل ګرځي.

شتمن هيوادونه د دې حالت هر کلی کوي او د دې وضعي څخه ګټه پورته کوي او د نړۍ ډېر د لوړ کچ پوهان او څېړونکي ځانته جذبوي، ښه وسايل او امکانات ورته برابروي او د دوی څخه د خپلو هيوادونو او دولتونو د چټکي ودې او پرمختيا لپاره کار اخلي. د دې وضعيت نتيجه دا راوځي چې د شتمنو او نادارو ملکونو تر منځ واټن لا زياتيږي او په وروسته پاته هيوادونو کښې د فقر ګراف لوړيږي.

په تاسف او تاثر سره باید وویل سي چي دغه منفي او د بدمرغی نه ډک دود او دستور ژموږ په هیواد کي تر ټولو زیاته وده کړې ده او د هیواد اکثرو پوهانو خپلي بستري پر شا کړي او مزدوری ته راوتلي دي، او یا د ملک دننه په خواري او دربدري شپې او ورځي تېروي او په پای کښي د خپل ملک او ملت د ارمانونو سره ابدي دنیا ته کډه کیږي .

اروا ښاد **علامه رشاد** . یو د هغو ارمانجنو پوهانو څخه و چي د جنگ ځپلي افغانستان او غمځپلو افغانانو د تاریخ، فرهنگ، ادب، کلچر او ملي او افغاني ارزښتونو د ژوندي ساتلو او بډاینې په خاطر د ژوند تر آخري سلگی پوري د قلم څخه لاس هوري نکړ .

که څه هم ځان بېوس بولم، چي د استاد د شخصیت او پوهي په اړوند نظر څرگند کړم، خو د یو افغان او پوهي د یو کوچني لاروي په صفت تکل لرم چي د دې لوی بحر د یوه څاڅکي په هکله یو څه ولیکم .

## د لوی استاد د شخصیت مهم اړخونه :-

**۱. مر حوم علامه رشاد شخصیت د یو څېړونکي، محقق او استاد له اړخه :-**

**استاد** په تحقیق او څېړنه کي ډېر متجسس، محتاط، د غور او دقت او هر اړخیزي محاسبې د میتود خاوند و، او زما په اند د ده د ډېرو آثارو د نه چاپېدو علت د اقتصادي مشکل تر څنگ همدغه د استاد د ژورلید او ځانگړي څېړندود لامل کېدای سي .

په تحقیق او څېړنه کي د استاد بله ممیزه د معانیو په اړوند په نوي میتود سره د مختلفو ژبو څخه کار اخیستل و . همدارنگه استاد د پښتو ژبي د ادبیاتو د عروض په برخه کښي یوه نوې طریقه استخراج او وړاندي کړه چي ساري یې نه لیدل کیږي .

**علامه رشاد** د یو استاد او ښوونکي په حیث علم او معارف ته خاصه پاملرنه درلودله او د وطن د بچیانو د تعلیم او تربیې لپاره په هر زمان او مکان کښې مرستي رسولي دي . او لارښودني یې کړي دي او په ډېرو سختو شرایطو کي یې خپل ښواد او هیوادوال یوازي نه دي پرې ایښي .

**۲. استاد د یو عالم، فاضل، شاعر او ادیب په صفت :-**

لوی استاد د عنعنوي او دودیزو علومو د زده کړي تر څنگ د نوو او مدرنو علومو او فنونو زده کړه په ډېر عالي کچ سرته رسولې او په دې توگه استاد د دودیزو او مدرنو علومو د وصل او تلفیق د یو مهم پُل حیثیت غوره کړی دی او دا د استاد همهغه مشخصه ده کوم چي د پښتو ادب د آسمان پنځه گونو پخوانیو ستورو د پر نله کولو پر وخت ده ته یو خاص مقام او مکان وربخښي . د استاد د ستر تیا او قوت بله نښه پر مختلفو ژبو او ادبیاتو باندي د ده پوهه او برلاسي وه چي د هغو په مرسته په پښتو ادبیاتو کښي نوموړي ته د یو عالیشان څېړونکي او مخکښ محقق مقام ور په برخه کړ .

**۳.** د دې فرهنگي لوړ شخصیت او لیکوال بل اړخ د مرحوم د آثارو په کثرت او تنوع کښي کتلای سو او دا په خپله استاد ته د یو کامل او جامع پوه لقب ور کوي او په افغاني ټولنه کښي ده ته د یو لوی علمي او هر اړخیزه څېره په ستر گو کیږي .

**۴. د استاد د شخصيت اجتماعي او سياسي اړخونه -**

تر هغه ځايه چي زه پوهېږم او د استاد سره مي کتلي دي، مرحوم د ډېر لوړ ملي او سياسي تفکر او تصوره څخه برخمن او د سياست په ډگر کښي د افغاني او معتدلو اسلامي ارزښتونو پر بناء د يو سياسي سيستم پلوی و، ده په ويښو زلميانو کښي برخه درلوده، او همېشه په سياسي مسايلو کښي د بيان، د لهجې د صراحت خاوند و .

همدارنگه علامه د يو بادرده او بادرکه افغان پوه په حيث د عمر تر پايه پوري د افغان ملت د رنځونو او دردونو د دروند بار وړلو يو لوی مخکښ او مرجع گڼل کېده او د هيواد په ملي او سياسي مسايلو کښي د پراخ فکر او سوچ خاوند و .

د استاد **علامه رشاد**  لوړ علمي، فرهنگي او ادبي شخصيت د افغانستان د سترو پوهانو په شنه آسمان کښي د يوه روښانه ستوري په شان د تل لپاره ځليږي او تر ابده پوري به هر افغان ورته درناوی کوي .

د استاد عظيم ميراث او د ده د علم او فرهنگ بې پايه قافله ټولو افغانانو خو په ځانگړي ډول فرهنگيانو، د قلم خاوندانو او دولت ته دا ملي او اسلامي وظيفه او مکلفيت ور په غاړه کوي، کوم چي بايد د استاد پاته خزانې پټي پاته نه سي، بلکي د همت په مشترک تړون سره تمويل، تکميل او نشر ته وسپارل سي .

❁❁❁❁❁



**کاکا اسدالله پوپل**

زما په نظر د عِلم عَلم **فاضل استاد علامه پوهاند اکاډميسن عبدالشکور رشاد** د تاريخپوهني، ژبپوهني، لغتپوهني، شعر او ادب د ډگر پر صفحو هغه تلپاته ستر شخصيت دی چي نوم به يې د همېش لپاره د هيواد په تاريخ کي ژوندی وساتل سي .

هغه په تاريخپوهنه کي داسي محقق و، چي د تحقيق سره يې نقد گډ و، هغه ساده ليکنه کوله خو څېړنه يې کره کوله، د دوی همدا کره کتنيز عمل و چي دی يې د تاريخ د آزمويني له لابراتوار څخه بريالی راايستلی و .

خدای بخښلی فاضل استاد په ژبپوهنه کي د نبوغ تر حده پياوړی او د عالي ذهنيت څښتن و، د خپلي مورنۍ او هيوادنۍ ژبو څخه علاوه پر اردو، عربي، روسي او انگرېزي ژبو باندي مسلط و. سانسکريټ ژبه يې په گرامري بنيادونو زده او څېړلي وه، له همدې کبله دوی پخپلو آثارو او څېړنو کښي د هغوی څخه په استفاده باندي خپل آثار او څېړني وسيع او پراخي کړيدي .

د شعر او ادب په برخه کي د هغه خاصه ځانگړتيا دا وه چي اشعارو يې ملي محتوا درلوده، هغه په ښودلو او پخو الفاظو په خپل شعر کي د زمانې د ناخوالو او رنځونو سره مقابله کوله .

ستر پوه **علامه عبدالشکور رشاد** په خپل هيواد او سيمه کي داسي الماسي شخصيت له ځانه جوړ کړی و چي په خلا او رڼا يې د هيواد. د پښتني فرهنگ او ادب نړکلې دنيا د تل لپاره ځلانده او روښانه ساتلې ده .

نن زموږ څخه داسي څوک بېل سوی دی چي د هغه د مړيني له کبله د قلموالو او فرهنگيالو د ټولگې پر کور غم نازل سوی دی . ستر پوه **علامه پوهاند عبدالشکور**

رشاد ته د لايزال خدای ج له درباره جنت فردوس او د تور لحد مځکه ورته د ور پسمو په ځبر پسته غواړم .

روح دې ښاد وي !





**شفيق وردګ**

د **لوی استاد** **اروابناد علامه اکاډمسين پوهاند رشاد** په اړه به خپل نظر د اليکسي تولستوی په دې وينا پيل کړم چې ويلي يې دي : "د لويو خلکو ژوند د زېږېدنې او مړينې په دوو نېټو، نه بلکې يوازې په يوه نېټه ټاکل کيږي او هغه د زېږېدنې نېټه ده" .

**لوی استاد** هم په ۱۳۰۰ لمريز کال پيدا سو، تر هغو چې افغان وي، افغانستان وي، د کلتور، ادب او پوهې مينه وال وي د استاد نوم به هم وي .

اروابناد **علامه رشاد** خپل د نيمې پېړۍ نه زيات عمر ډېره برخه د هيواد د بچيانو په روزلو، د کلتور په بډای کولو او د څېړنې په ډګر کې د نويو لارو په پرانستلو تېره کړه . د دوی وفات نه يوازې د افغان ټبر له پاره بلکې د سيمې له پاره هم ستره ضايعه ده، ځکه د سيمې په تاريخ، کلتور او ژبو باندې يې ځانګړی برلاسي درلوده او په اړه يې د نظر خاوند وُ .

په نوره نړۍ کې زياتره مهال پوهان يوازې پوهه لري، ټولنيز شخصيت او يا د خلکو تر منځ عملي شتون ته دومره ارزښت نه ورکوي ان چې زموږ په هيواد کې هم يو شمېر په دې باور دي، خو زموږ **استاد** نه يوازې عالم و، بلکې د اخلاقو، شخصيت، معنويت او ټولنيزو بريدونو له پلوه يې هم زموږ له پاره د مرجع حيثيت درلود .

د **لوی استاد** په مړينه خورا خواشيني يم، له لويه خدايه ج غواړم چې **علامه صاحب** د افغان ټبر وروستی ستوری نه وي، بلکې په موږ کې د ستورو دا لړۍ تر هغې روانه وساتي تر څو چې دا نړۍ وي .

اروا يې ښاده يا يې تلپاته



**سيد عابد شاه عابد**
**د بلوچستان د پښتو اکاډمۍ مشر**

**پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** د پښتو او پښتنو لپاره يو داسي محترم نوم دی چې احترام يې پر هر پښتانه او خصوصاً پر علم دوسته ډلې باندې لازم دی .

د ده له مړينې څخه پښتو له يوه داسې تاوان سره مخامخ سوه چې پوره کول يې ممکن نه ښکاري .

رشاد صاحب د ادب لوستونکي يتيمان کړه !

د مينې، اخلاص او پوهې نوم **عبدالشکور رشاد** دی، او تر څو چې دغه روڼاوي خليږي **رشاد** به هم دغه ډول د پښتنو په زړونو کښې ژوند کوي .

الله تعالی دې د ده پر ارواح باندې خپل رحمتونه واوروي .





**فضل محمد پنهان**

**فاضل استاد اکاډمیسن پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** رح د پښتو او افغانانو یو ستر ویاړ و .

**فاضل استاد** خپل ټول ژوند د پښتو ژبې او پښتون ټبر په خدمت کې تېر کی، په زرو شاگردان یې وروزل او افغاني ټولني ته یې وړاندې کړل .

افغانانو خو په ځانگړې ډول پښتنو ته یې ستر او نه هېرېدونکې خدمتونه کړي دي چې د ده په دغه علمي، ادبي، تاریخ، سیاسي، فرهنگي او فیلالوژیکي خدماتو ټول افغانان ویاړي او فخر په کوي .

زه چې د **فاضل استاد رشاد** رح د شاگردانو څخه یم، نو به څنگه دا ارزیابي وکولای سم چې د **فاضل استاد** پر متبحر علمي، ادبي، تاریخي، سیاسي او فرهنگي شخصیت څه ولیکم، دا ماته گرانه او تر خپل وس یې تېره بولم .

که چیرې مې څه لیکلي وي هغه به د ده د علمي شخصیت په باب نیمگړې او ناچیزه وي او که چیرې ووایم چې استاد د علومو بحر و، مغالطه به نه وي او مبالغه به مې نه وي کړې .

**علامه پوهاند رشاد صاحب** تقریباً څلور کاله د کابل په پوهنتون کې د ادبیاتو او انساني علومو په پوهنځي کې زما استاد و، او هلته یې موږ ته ادبي فنون لکه :

بدیع بیان، قافیه او عروض تدریسول . د تدریس ژبه یې ډېره خوږه، نرمه، پسته، فصیحه او ساده وه . په تدریس کې بې مانوس، سوچه کلمات، ساده او لنډې جملې چې د فصاحت او بلاغت په مرغلرو مرصع وې استعمالولې چې همېشه به د زده کوونکو په ذهن کې پاته وې . چې داسې افادي قوه په نادرو استادانو کې محسوسېږي .

ده هیڅ ډول منطقوي او ژبنی تعصب نه درلود او ټولو شاگردانو ته یې په یوه ستر گه کتل، همدغه سبب وچې ټول شاگردان ده ته په احترام قایل وو .

پوهاند صاحب به د خپلو شاگردانو سره په مینه، محبت او ظرافت خبرې کولې او ورته ویل به یې چې :

"مطالعه وکئ، خپل هیواد او ولس ته خدمت وکئ، وطن په پوهه او زده کړه ابادېږي" .

ارواه دې ښاده وي !





**عبدالمتین ارغسانی**

د کندهار مجلې درنو مسئولینو او لوستونکو ته !

د **علامه رشاد صاحب** رح ابدي سفر زموږ د ملک په ځانگړې ډول د پښتانه ټبر لپاره په دې حساسو شېبو کې داسې غمیزه او ضایعه ده چې په یوه پېړۍ کې به د دې تشې ډکېدل له امکانه وتلي وي .

د هغوی د مجلس ساده خبرې داسې ښکارېدلې لکه په یو پوهنتون کې چې مجرب استاد درس ور کوي . په نورو هیوادو کې په دولتي سطحه د داسې نابغه پوهانو د علم څخه داسې استفاده کیږي، لکه د برق د رڼا څخه . . .

متاسفانه زموږ په هیواد کې یوازې او یوازې په شخصي ډول که څا کومه علمي پانگه تر لاسه کړې ډېره سرمایه به یې بولو .

دولت باید په خپل ټول توان د **علامه صاحب** رح ناچاپه آثار په ښه کیفیت چاپ او د هیواد تاریخپوهانو، عالمانو، ژبپوهانو . . . په اختیار کي ورکړي، تر څو د هیواد علمي څېړې د یوه ځراغ په شکل استفاده ورڅخه وکړي .

او د دې آثارو د چاپولو لپاره دي د ملک شاعران، پوهان او پوهنتونو ټولنپوهان په یوه متحده آرزو د ممکنه مراجعو څخه غوښتنه وکړي تر څو د دې ملي پانګي څخه ټول افغان ملت مستفید وګرځي .

که د دوی دغه پټه خوله پوهنتون اعمار او تعقیب نکړو ګواکي زموږ علمي مبارزه به رښتینې نه وي . د ده د علمي خدمت او زحمت په احترام باید یو علمي کانون ونومول سي، په اخیر کي د متعال خدای ﷻ څخه د دوی د ادبي سفر په آزموینه کي کامیابي غواړم .

په درنښت



عزت الله شمسزی

**اکاډمیسین پوهاند علامه رشاد** د نړۍ یو لوی عالم و، استاد نه یوازي دا چي د خپل عمر تقریباً اویا کاله یې په فرهنګي خدمت کي تېر کړي بلکي د دې خدمت تر څنګ یې د خپل ولس د فکري روزني او پالني، سیاسي هویت او عظمت ساتلو لپاره هم ډېر عمر کار کړی دی .

**استاد** دومره لوی شخصیت درلود او اوس یې هم لري چي پر لویانو سربېره زموږ د ګران هیواد کوچنیان هم د **استاد** له درانه نامه سره اشنا دي . زموږ په کور کي چي کله هم کوچنیان د استاد کوم تصویر پر کتاب یا مجله وګوري نو وایي :

"دا پر ځای کړئ، چي دا تصویر پکښې دی" .

له دې نه ښکاري چي استاد د کوچنیانو په زړونو کي هم خاص محبوبیت لري، دا په خپله د استاد د ستر شخصیت او د خدای ﷻ د دوستانو په څېر یو کرامت څرګندوي، د لوی استاد مړینه نه یوازي افغانانو ته بلکي ډېرو هیوادونو ته یوه ستره ضایعه وه .

**اروا یې ښاده او پر کور یې نور**





**جاوید کوټوال**

که د ارواښاد **اکاډمیسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد صیب** په باره کي هر څومره وګړېږو بیا هم د هغه د علمیت او پوهې، خدمت او منډو ترړو په پرتله یوه ډېره کوچنۍ خبره بریښي .

که د **علامه رشاد صیب** ټول ژوند ته نظر واچول سي، نو وبه لیدل سي چي د **رشاد بابا** ژوند ټول د خپل ګران ملت د بچیانو په خدمت کي تېر سوی دی .

**رشاد بابا** رح نه تنها پښتو ژبې او پښتنو ته خدمت کړی بلکي د دې تر څنګ یې د ګران وطن د سیاسي نظام د مثبت اوښتون په لور خپلې مندي او هڅې نه دي سپمولي چي د هغه د هڅو پایله اولس په خپلو سترګو ګوري .

**رشاد بابا** ـ د افغانستان د تاریخي هویت د ساتلو او بشپړولو لپاره بېشماره شپې رڼې کړې. تنها یې په خپل وطن کې په دې هڅو بسیا ونکړه. وطن یې پر ښود له غرو رغو واوښت او د خپلې معشوقې لپاره یې چې کومه ستومانتیا وزغمله پر هغه څوک ستر ګې نه سي پټولای . . .

خیر په هر صورت !

اوس چې د **رشاد صیب** سیوری نه لرو، دا به د لوی څښتن خوښه وي . خو موږ د همدې څښتن څخه د ده د مبارکې اورا د ښادۍ غوښتونکي یو او د لوی څښتن جل څخه غواړو چې د ده د برکت سیوری د وطن پر ټولو وګړو کښېږدي .

اروا یې ښاده او د فردوس د نعمتونو څخه برخمن



## د هیواد په معاصر تاریخ کې یوه ډېره ستره او نه جبرانېدونکې ضایعه



**عبدالولي شجاعت**

دا لیکنه د یوه داسې عالم، ستر شخصیت، دقیق څېړونکي، لیکوال، شاعر، ژبپوه، ادبپوه، تاریخپوه او ټبرپوه په هکله لیکو چې د افغاني فرهنګ غوړېدا، وده او پرمختګ یې ستر ارمان و. او ددغه ارمان د پوره کولو په خاطر یې پوره (۷۰) کاله شپه او ورځ پر ځان یوه کړې وه .

نن د یوه داسې ستر او مدبر انسان، دقیق څېړونکي او لیکوال په اړه خواله کوو چې د خپل ټول فرهنګي ژوند په ترڅ کې یې له پوره علمي احتیاط څخه کار اخیستی دی او موږ ته یې تیاره ګوټونه روښانه کړي او یوه کرښه یې هم بې مسئولیته نه ده کښلې .

دا لوی او مدبر عالم، دقیق لیکوال او څېړونکی ارواښاد **علامه استاد پوهاند اکاډمیسین عبدالشکور رشاد** دی چې د ۱۳۸۳ لمریز کال د لېندۍ د میاشتې پر یوولسمه د ماپښین د یوې بجې په شاوخوا کې د هغه له سیوري څخه بې برخې سولو او د ژوند په دې کړکېچنو حالاتو کې بې لارښوده پاته سوو .

استاد د "پښتانه مصنفین" په کتاب کې شپږ سوه دیارلس تنه پخواني او معاصر مصنفین په (۱۰۴۵) مخونو کې معرفي کړي دي .

پښتانه شعرا په فارسي کې د استاد یو بل پنځه سوه شپېته مخیز کتاب دی .

هغوی د "پښتانه شعراء په اردو کې" اثر په پنځه سوه شل مخونو کې لیکلی او په هغه کې یې اته سوه څلور دېرش تنه شاعران چې په اردو ژبه یې شعرونه ویلي معرفي کړي دي .

له هغوی څخه د شعرونو ټولګې، بهرنیو هیوادونو ته د سفرنامو څو کتابونه او داسې نور زیات کتابونه چې زموږ د تاریخ، فرهنګ او ادب ډېري پټې روښانوي را پاته دي .

دې پوښتنې ته چې ولې د افغانستان د تاریخ د دومره کمسارې عالم اکثره آثار لا چاپ سوي نه دي د ادبیاتو د تاریخ لیکوال اروا ښاد سرمحقق محمدصدیق روهي داسې ځواب ورکړی دی : "علت یې دا دی چې ده ته د خپل نفس مناعت اجازه نه ورکوله چې د کتاب د چاپولو غوښتنه وکړي" .

هو !

د نفس مناعت، اخلاقي شجاعت او د دنیا د مال و منال و مقام و نوم او شهرت په مقابل کي د ستر استاد بې پروایي د دې سبب سوې وه چي هغه ټول عمر د ظالمانو او جبارانو په مخالفت کي او د بېوزلي او ځوربدلي ملت په حمایت کي تېر کړي .

نن د یوه داسي انسان سیوری زموږ له سره کم سو چي په پېړیو پېړیو کي به یې ساری نه سي پیدا .

نن د یوه داسي عظیم انسانه بېل سوو چي علم وربانديْ ویاړي او اخلاق وربانديْ فخر کوي .

د بشر تاریخ راته وایي چي علم او اخلاق، عقل او ضمیر، تواضع او عظمت په ډیرو لږو انسانانو کي یو ځای موندلای سو چي په دغو ډیرو لږو انسانانو کي یو هم همدا لوی عالم، ستر شخصیت، دقیق څېړونکی، لیکوال، شاعر، ژبپوه، ادبپوه، تاریخپوه ارواښاد **استاد علامه اکاډمیسین عبدالشکور رشاد** و. او بس .

روح دې ښاد وي



**رښا ترین**

په رښتیا سره چي د **لوی استاد پوهاند علامه عبدالشکور رشاد صاحب** مړینه نه یوازي زما لپاره بلکي د هر افغان لپاره او آن د سیمي د فرهنګي ټولنو او سړیو لپاره یوه لویه ضایعه ده .

د دې ستر شخص د مړیني د دردناکي مړیني په اورېدو سره سم داسي یو احساس راته پیدا سو چي افغان اولس خپله لویه تاریخي او فرهنګي شتمني د تل لپاره له لاسه ورکړه . خو د خوښۍ ځای دا دی چي استاد داسي ډېر څه راته پرېښوول چي کلونه کلونه، حتی پېړۍ پېړۍ به یې موږ ته لار روښانه کړې وي .

کله چي پوهاند صاحب د روان کال په سر کي د "کندهار د تاریخ په اوږدو کي" د څېړنغونډي لپاره راغلی و، ما د غرمې د ډوډۍ د خوړلو په وخت کي پوهاند صاحب ته وویل :

ستا په لیدلو هم خوشحاله سوم او هم خفه سوم .

هغه وخندل او ویې ویل چي :

څنګه؟ ما وویل :

چي ستاسو علم او بېساري دانش زه خوشحاله کړم، چي موږ هم په دا خرابه سوي هیواد کي یوه ستره خزانه لرو او خفه په دې یم، چي خدای ناخواسته دا خزانه زموږ د لاسه څخه د خزان باد د ځانه سره یو نه سي .

پوهاند صاحب وخندل او ویې ویل :

نه په افغانستان کي یوازي زه نه یم، افغانستان زما په شان ډېر نور هم لري .

هغه صفات او ځانګړتیاوي چي د پوهاند صاحب په وجود کي راټول سوي وو د هغه د بیانولو لپاره زما ژبه او قلم دواړه ناتوانه دي .

**اروا یې ښاده فردوس جنت یې ځای**



ش . اڅکزی

**علامه پوهاند اکاډمیسن عبدالشکور رشاد** د علم او پوهې هغه سمندر و، چې په خپل ځیاند استعداد یې د تاریخپوهنې، تحقیق، ژبپوهنې، شعر او ادب نړۍ تسخیر کړې وه او یو ځانګړی مهارت یې درلود .

ما چې د علامه فاضل استاد د مړینې خبر واورېدی، داسې مې وانګېرله چې د هیواد د علم لویه او عظیمه هستي، ژوندی ګرځنده د علومو اکاډمي او بالآخره هغه د انسانیت یو بېساره بېلګه له منځه ولاړه چې زموږ په هیواد کې یې تاریخپوهنه، ژبپوهنه، ادبپوهنه، لغتپوهنه او پښتو بې پلاره او یتیمه کړه .

د **فاضل استاد** د مړینې په اړوند هغه تاثرات چې زما سره سته د قلم په څوکه نه سم لیکلای. خو که څه هم اوس د روند او ستر پوه **علامه رشاد** زموږ په منځ کې نسته ، زموږ دنده ده او هڅه باید وکړو چې د دوی لاره پرې نږدو. که څه هم د ده تشه خو نه سو ډکولای خو بیا هم د یووالي او وروروولۍ په درشل کې د دوی د ارمان د پوره کولو لپاره هاند او کوښښ وکړو .

په درنښت





**پوهاند رازقي نړیوال**

کوم علمي نومونه او فرهنګي القاب لکه استاد، پوهاند، اکاډمیسین، علامه، تاریخپوه، ادبپوه، ژبپوه، ټولنپوه او ادبي شپږم ستوری چې د خدای بخښلي **عبدالشکور رشاد** د نامه سره انتساب لري، دا ګرده د ده د ستر شخصیت سره مناسب او ښکلي ښکاري .

څرنګه چې **استاد رشاد** یو پراخ بعدي شخصیت و او زموږ د ټولني علمي او فرهنګي، ملي او نړیواله بډایه شتمني وه هغه د تلپاته ویاړونو سمبول چې د پوهې او معرفت مشعلدار او د ژوندانه د ستړي کوونکو مبارزو د ډګرونو علمبردار و، نو په علمي، فرهنګي، سیاسي، فلسفي، تاریخي، ادبي او داسې نورو زمینو کې یې غښتلتیا، پیاوړتیا او وړتیا یوه ناپایه سمندر ته پاته کیږي او نه یوازې په هیوادنۍ کچه بلکې جهان شموله خصوصیت لري، له دې ځایه په هیڅ صورت د دې کوچنۍ پاڼې په لمنه کې لکه څنګه چې مناسبه ده زه یې د معرفي او په دې اړوند د څه ویلو څخه بېوسه او ناتوان یم، ځکه هیڅکله سمندر په لپه کې ځایېدای نه سي .

که زه ووایم چې **لوی استاد رشاد** یو ستر انسان و، او د یو واقعي انسان ډېر لوړ مقام او اخلاق یې درلودل او د غورو ممیزاتو یو په زړه پوري تمثال و، که وویل سي چې استاد د علم او پوهې او معرفت یوه سرشاره خزانه وه، که ووایم چې لوی استاد ډېر ښه مورخ، ادیب، ډېر ښه شاعر، ډېر ښه لیکوال، ډېر ښه محقق، ډېر ښه متجبر، ډېر ښه فیلسوف، ډېر ښه تاریخپوه، ژبپوه، ټولنپوه، ډېر ښه ریاست، شجاع مبارز او په یوه کلیه ګرده عالي صفات او غوره مشخصات د ده په وجود کې متمرکز وو نو له هر ډول مبالغې څخه به لیرې موضوع وي .

خدای بخښلی **استاد رشاد** د یوه ژوندي دایره المعارف، ژوندي او مستند تاریخ او یو غني، علمي او تاریخي ارشیف و . **استاد** لوی استاد و، د ده په ښوونه او پوهونه کې بېساري سخاوت موجود و، د ده جونګړه د هر مینه وال خپله جونګړه

وه، ځکه دوی به د هر چا هرکلي په ورین تندي، متبسمه څېره او په یوه جهان صمیمیت کاوه .

**استاد** بېگانه پرست نه و، د خپلو خلکو او هیواد سره یې دومره زیاته مینه درلوده چې حتی د جگړو په خوروونکو او تباه کوونکو ناورینونو او ناتارونو کې یې هغوی پر نښنودل، که څه هم په باندنیو هیوادونو، ډېرو پرمختللیو هیوادونو کې د استوگنې او استراحت لپاره هر ډول شرایط موجود وو، خو خدای بخښلي **استاد** خپل لوی افتخار دا باله چې د هیواد د ناورو او ترخو شرایطو گالل ورته له وطن لیرې په پردېسې کې له ښو شرایطو ډېر زیات غوره دي .

لوی استاد نه غوښتل لکه ستر او قهرمان احمدشاه بابا غوندې د خپل وطن ارمان په لاندې بیت کې وکړي :

د دهلي تخت هېرومه چې را یاد کړم
زما د خپلې پښتونخوا د غرو سرونه

**لوی استاد** د زړونو استاد و، ځکه چې د ښه خُلق، ښه چلند او ښې مینې په وجه یې په زړونو کې ځای درلود او د زړونو پاچا و، او پر هغوی یې حکومت کاوه .

**لوی استاد** هغه روڼ ستوری ته ورته و چې په ختیز او لوېدیځ کې یې د علمي او اخلاقي فیوضاتو او فضیلتونو پلوشې تل خپرې وې .

**لوی استاد** څو بعدي شخصیت و، دا ځکه چې د ډېرو هیوادونو په ژبو پوهېده او حتی په سانسکریټ هم په پوره ډول پوهېده .

او که خبره خلاصه کړم نو د استاد د مړینه نه یوازې د د افغاني ټولني لپاره بلکې په نړیواله کچه یوه نه جبرانېدونکې ضایعه ده. هغسې ستره ضایعه چې د هیواد د نومیالیو او سترو علمي او فرهنگي شخصیتونو په ډله کې به تر ابده پورې د ده ځای خالي وي .

که د گران خدای بخښلي **استاد** په نسبت د خپلو خاطرو په هکله ووایم دا به کافي وي چې ووایم :

د **استاد** په اړوند زما خوږې دومره زیاتې دي چې بیانولای یې نه سم او دا ځکه چې د لوی استاد سره هر ځل کتنه لیدنه زما لپاره یوه خوږه، قیمتداره او نه هېرېدونکې خاطره ده .

**د لوی استاد اروا دې ښاده وي**



**گُل کندهار ته به سلام کړم**
**چې یې روزلي د رشاد غوندي مړونه**

**احمد لودین**

د هیواد ستر تاریخپوه، ژبپوه، ادیب، تکړه شاعر او د استادانو استاد **لوی استاد پوهاند اکاډمیسین علامه عبدالشکور رشاد** په داسې حال کې د مرگ داعي ته لبیک ووایه چې د هیواد د فرهنگ بڅیان، ادیبان او د علم خاوندان یې هېر کړي وو چې د ده ضایعه د فرهنگي نړۍ ته نه ډکېدونکې تشه ده .

لوی استاد په فرهنگي نړۍ کې هغه ځلېدونکی ستوری و، چې د هیواد او ختیځ فرهنگ یې ټوله ځلولی و .

لوی استاد د خپل ژوندانه په جریان کې و فرهنګي نړۍ ته دومره بې حده خدمت وکړ چې نه هېرېدونکی دی . زیات شمېر آثار یې ولیکل، تاریخونه یې ولیکل . کیسې او ناولونه یې ولیکل .

زیات شمېر آثار یې چاپ سول، او تر اوسه یې لا زیات شمېر آثار ناچاپه دي، ځکه ده نه غوښتل چې د ده آثار دي بل څوک په خپله شخصي پانګه چاپ کړي . د ده آثار د ده د اقتصاد د کمزورتیا له امله بې چاپه پاته سول . چې دغه آثار و فرهنګي ولس ته د لوی استاد لوی میراث دی .

لوی استاد د نن څخه درې اتیا کاله مخکې په کندهار کې دې فاني دنیا ته سترګې خلاصې کړې . د خپل عمر پر دوولسم پسرلي د لومړنیو زده کړو څخه وزګار سو، وروسته یې د هیواد د بچیانو د سالمي روزنې لپاره د ښوونکي سپېڅلې دنده پر غاړه واخیسته، او د خپل لوړ استعداد په برکت یې ډېر زلمیان د هیواد او هیوادوالو د خدمت مصدر وګرځول . ستر او عظیم ښتن دي د دې سپېڅلې دندې په عوض کې ده ته سپېڅلی جنت په نصیب کړي .     **آمین**

د وخت په تېرېدو سره او د خپل علمي استعداد او رښتیني خدمت په برکت ډېر ژر د هیواد او سیمې ستر ویاړ او افتخار وګرځېدی، او د هیواد د هر فرهنګي او علمي بچې په زړه کې د **رشاد صاحب** نوم ځای ونیوی .

درنو لوستونکو ! د **پوهاند رشاد صاحب** هیواد پالنه او اولسپالنه په هغه کچه وه چې د خپل عمر د وروستیو کلونو ترخې ورځې او شپې یې همدلته په هیواد کې د هیوادوالو تر څنګ تیرې کړې .

**لوی استاد پوهاند رشاد صاحب** د افغاني ټولني یو ژوندی او ناطق کتابتون و، او د معلوماتو ډکشنري وه، او په افغاني ټولنه کې یې سیال او مثال نه درلودی .

نور د **علامه استاد اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد** پر علمي شخصیت لیکنه او رغېدنه زما له توانه وتلی کار دی، او په دې لنډه او تنګه لیکنه کې د **رشاد صاحب** هر څه نه لیکل کیږي، ځکه چې د پوهاند رشاد په باره کې لیکنه ډېر وخت، ډېر کاغذونه، ډېر قلمونه او ژور فکر غواړي .





**عبداللطیف اشنا**

زه پخپله د **پوهاند علامه رشاد بابا** پر علمیت، پوهه او ادبپوهنه باندي پخپله نیمګړې او ناچیزه پوهه چې لرم یې هیڅ معیار نه سم ټاکلای، ځکه خان د ده د علم په دریاب کې یوه قطره هم نه بولم خو فقط دومره وایم چې **علامه رشاد بابا** د لوړ علمیت، عالي شخصیت او پوره شجاعت درلودونکی و، چې په اوسني عصر کې د افغانستان یې زه مثل نه وینم، تاریخ پوهان، ادیبان او فرهنګیان د ده پر علمیت قایل وه، او ده ته یې د زیات قدر په سترګه کتل، استاد ډېر ښه ذهن درلودی، **علامه رشاد بابا** د تاریخي پلټنو او ادبي شاهکاریو خاص نبوغ درلود، تقریباً په (۸) ژبو پوهېدی او په اکثرو ژبو یې رواني خبرې او لیکل هم کولای سوای .

**استاد** ډېر حلیم او د ښې طبعي خاوند و، د هر چا سره یې د ده په سطحه ډېر ښه مجلس کاوه .

د ده د ورور مرحوم مولوي اختر محمد د مړيني د عذر لپاره زه و کور ته ورغلم چي په پنځمه ناحیه کي موقعیت لري. غوښتل مي چي د لومړي ځل لپاره د **استاد** سره هم ووینم او د مولوي صاحب د فاتحې عذر هم ورته وکړم خو **استاد** و مسجد ته د لمانځه لپاره تللی و، زه هم و مسجد جامع ته ورغلم د مسجد په خوله کي مي د **استاد** په لیدو ستر ګي مشرفه سوې کله چي مي ځان ورته معرفي کی او بیا مي د فاتحې د عذر خبري ورسره وکړې، استاد زما د مرحوم پلار "اشنا" د نوم په اروېدو سره په مهرباني په یو داسې ډکه غېږ کي ونیولم، او دومره د ترحم ژړا يې راسره وکړه باور وکی چي و ماته د خپل پلار په شکل د ده مهرباني غېږي خوند راکی، نو **پوهاند صاحب** د یو مهربانه پلار حیثیت درلودی او وماته يې د وراره په کلمه خطاب وکی، زه به د ده دغه د مهرباني ځخه ډکه غېږ او ژړا د خوښي چي زما په لیدو ډېر خوښ سو هیڅ وخت له یاده ونه باسم، استاد ډېر ښه معلم و، هره خبره يې درس و، هري خبري يې د مرغلرو حیثیت درلودی، **استاد** ډېر حلیم او زغمونکی سړی و .

**د استاد یاد دي تل او نوم دې ژوندی وي**
**روح دې ښاد او د لایزال رب په دربار کي دي**
**مرحوم او د رحمت په پلوشو کي ډوب وي**





**نوراحمد قرآنمل**

د پښتنو د معنوي نیکه، ستر پوه **اکاډمیسن پوهاند علامه رشاد بابا** د اروا د خوښي لپاره د کندهار د ځانګړي سوې مجلې درنو لوستونکو !

د فخر موجودات سرور کاینات حضرت محمد ﷺ د تګلاري په تقلید مي سوغات ومنئ ! السلام علیکم ورحمه و برکاته !

ویاړنه ده چي د کندهار مجلې درنې صفحې د خپلو سترو پوهانو لمانځنه په خپله غېږه کي لمانځي ای کاش ! چي موږ د دې ګڼې په لیکو کي د وېر پر ځای په خندا سی وای .

درانه لیکوالان چي د نوموړي د زیات محبت ځخه هغه د پښتو د ادب د آسمان ستوری بولي، ځیني يې د پښتو د جهان جلالي غر بولي او داسي نور اصطلاحات او جُملات د **علامه رشاد بابا** لپاره کاروي چي البته د یادوني محور يې ،وازي د پښتو پر لفظ راګرځي . د دې په عوض چي نوموړي ته ښه ښه القاب ،رکړي او یا هم په لوړ نامه يې یاد کړي، عکساً د هغه علمي جهان په یوه منحصر ،وکاټ کي راولي، حال دا چي **علامه رشاد** نه یوازي پر پښتو برلاسی و، بلکي هغه ،ه روسي، عربي، انګلیسي، اردو، فارسي، او سنسکریت هم پوره پوهېده، نو که د ،وموړي یاد ګیرنه په یوه علمي شخصیت سره وسي زما په نظر ښه به وي .



## د استاد آخري ارمان

**حاجي عبدالظاهر ځرک**

موږ چي به کله کله کابل ته ولاړو، د استاد ملاقات ته حتمي ورتلو. استاد ډېر مهربانه و، په ډېر ورين تندي به يې موږ ته ښه راغلی وايه، موږ ته چي په ذهن کي هره پوښتنه راتله هغه به مو د استاد څخه کول. **علامه رشاد بابا** به په ډېر اخلاص زموږ پوښتني ځوابولې.

تقريبا درې مياشتي د استاد د مړيني دمخه موږ کور ته ورغلو زموږ د ملګرو څخه يوه د استاد څخه دا پوښتنه وکړه چي:

"بابړ قوم په غلجو کي راځي که په درانو کي؟"

**استاد** ته دا پوښتني چنداني خوند ورنکړ، او داسي جواب يې ورکړ چي:

"اول بابړ يا بارکزي، توخی يا خروټي قومونه نه دي، دا قبيلي دي زموږ قوم د پښتون په نامه يادېږي. بابړ نه په غلجو کي دی نه په درانو کي.

د غلجو او درانو قبيلې چي دواړه سره يو ځای سي، د پښتنو دا نوري قبيلې پر ډېرېږي، زموږ خلک دا فکر کوي چي پښتانه خامخا بايد غلجي وي يا دراني."

**استاد** زياته کړه:

"دا ارمان به زه ګور ته يوسم چي که چا د يو پښتانه څخه پوښتنه وکړه چي په قوم څوک يې او دی ورته ووايي چي پښتون!!!"

او دا د شېر شاه سوري وصيت هم دی چي

"پښتنو قبيلويت پر پردئ قوميت جوړ کړئ!"

دا شعار استاد په خپل کتابتون کي هم ځړولی و.



## آسمانه حق دی د ژړا چي نن رشاد ښخوو
## مځکي ته وياړه چي د عصر قهرمان درکوو

**مېرمن قمر وکيلي اڅکزی**

نن د هجري لمريځ ۱۳۸۳ کال د لبندئ د مياشتي ۱۱مه ده، د کندهار آسمان د غمه ډک ځاځکي ځاځکي باران اوروي. داسي ښکاري چي ګواکي آسمان هم د وګړو سره د **علامه رشاد** په غميزه کي ژاړي.

د ادب د ستوري **علامه رشاد** مړينه د هيواد او منطقې لپاره يوه لويه تشه وه، چي بير ته پوره کول يې ښايي پېړی پېړی واټن وغواړي.

**علامه استاد پوهاند اکاډميسين رشاد** د خپل مهال يو ستر پوه، لوړ عالم، مورخ، محقق، اديب، شاعر او ليکوال و، چي خپل ټول عمر يې د هيواد او ټولني د پېژندلو په څېړنو کي تېر کی، تر څو د خپلو هيوادوالو لپاره د خپل ارزښتناکه آثارو په وړاندي کولو هغه څه وړاندي کړي چي نور يې د وړاندي کولو څخه عاجز دي.

**علامه رشاد** برسېره پر هغه علمي پوهه چي درلوده يې د ډېر لوړ ټولنيز شخصيت څښتن و، او ډېره نازنيني خندا يې هر چا ته دا جرئت ورکاوه چي د زړه ور ورته خلاص کړي، او د هغه سره په علمي بحث کي ورګډ سي، او ورسره خواله وکړي.

د ده بې تعصبه انساني لوړ اخلاق د هر چا سره مقناطيسي حالت درلود. زوړ، ځوان، نر، ښځه، خپل او پردی خوشحاله او د ده د عالمانه صحبت څخه يې خوند اخيست.





**محمد نبي صلاحي**

**علامه استاد رشاد** د فضلي استعداد خاوند او په ژوند يوه دايره المعارف مغزه ککره وه. که سړی د دغه انسکلوپيډيايي شخصيت علمي ژوندانه ته ژور سوچ وکړي نو دې نتيجې ته رسيږي چې **رشاد بابا** د تاريخپوهنې، ادب پوهنې، ژب پوهنې او ټولنپوهنې په برخو کې د پوهې او ادب کان و.

دغه وتلی عالم د مېړني او باشهامته افغان ولس د ګډ افغاني، اسلامي او انساني فرهنګ يو ځلانده ادبي ستوری، يو پاک نفسه مسلمان، د روحاني مقام او مرتبې خاوند، يو نوښتګر مفکر، يو هوښيار وطنپال، يو سپېڅلی سياست پوه، يو نامور ژبپوه، نوميالی ادب پوه، نامتو مؤرخ او جغرافيه دان و.

**رشاد بابا** په هره برخه کې له ډېر علمي احتياط نه کار اخيستی دی او له ښسو سره يې سرسري چال چلند نه دی کړی. **علامه استاد رشاد** د خپل پياوړي او مضبوط دريځ او استعداد له پلوه له علامه سيد جمال الدين افغان سره ډېر ورته والی او مماثلت لري، بنده په دغه برخه کې يوه لويه مقاله ليکلې ده چې ډېر ژر به درنو لوستونکو ته وړاندې سي.

**علامه استاد رشاد** له کومه وخته چې د ويښو ځلميانو د ملي غورځنګ غړيتوب تر لاسه کړ، د خپل ژوندانه په بېلا بېلو پړاوونو او ان د ژوندانه تر پايه پورې يې خپل مسير او پروګرام بدل نه کړ او په هماغه پروګرام او کرښه باندې ټينګ پاته سو.

د زړه له کومې يې هماغه ملي ارزښتونه وپالل او د هماغه سالم افغاني پيغام په ښه روزنه او پالندره بوخت و، رحمان بابا څه ښه ويلي دي:

**لکه ونه مستقيم پر خپل مکان يم**
**که خزان راباندې راسي که بهار**





**محمد يعقوب حکمت**

قدرت **اروابناد پوهاند رشاد** د يوې داسې ځېرې په ډول پر دې نيمګړې دنيا هست کړ چې په هجران يې د پوهانو او ارادتمندانو زياتې کړې د ډېر لوی وير سره مخ سوې.

زما خو هر ګړی د هغه تاثير ناکې ستر ګې
د هغه د پښتونولی څخه ډک بر ېتونه
د هغه د خوشال خان په څېر ببر سر
د هغه ورين او له شفقته ډک ټنده
لا تر اوسه هم نبغ په نبغه تر ستر ګو کيږي.

د. دې هر ګړي يادونه د دوی د يوه ګړي ناستې راته بخښلي دي هغه يو ګړی چې

: سيمې او هيواد دې ستر استاد زما لاس نيولی او داسې يې راته وويل:

کله به هم قدرت داسي ورځ راولي چي زه ژوندی او تاسو د هیواد ځوانان خوښ او خوشحاله ووینم. او بیا یې پر شا باندي په مینه په ډېر ورو په مبارک لاس وټکولم. کله چي یې زما سترګو ته وکتل نو زما سترګي هم له اوښکو څخه ډکي وې. ستر استاد او وتلي ځبرې چي راته وکتل د ټوکي په ډول یې زیاته کړه:

بچیه! هسي نه چي لباسي اوښکي دي پر مخ راغلي وي؟

ما ویل: یا استاده! دا ستاسو د ارمانونو د پوره کېدو په لاره کي زما د زړه د خوږ اوښکي دي.

کاشکي د استاد ارمانونه پوره سوي وای. د بده مرغه زما سره د هغوی د همدې کتني د ډېري لږې ورځي وروسته زموږ څخه د ابد لپاره بېل سو.

محمد عالم عزیزي وردګ

د پښتو ادب لوی استاد د ختیځ نابغه شاعر، تاریخپوه او وتلی لیکوال **اکاډمیسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** د افغانستان او سیمي د علمي آسمان هغه ځلانده ستوری دی چي د ده د ښکلا او ځلا له توصیف څخه یې زما ژبه او قلم عاجز دي.

خو دومره ویلای سم چي **رشاد** زموږ ملي شتمني او په نړیوال ډګر کي زموږ د هیواد د یوویشتمي پېړۍ علمي سمبول و، چي زموږ هیواد ته یې په علمي، ادبي او فرهنګي ډګر کي ډېري ویاړني رابخښلي دي.

موږ د ډېرو خوږو او درنو د مرګ خبرونه واورېدل خو د هیچا پر مرګ به دومره زیاتو خلکو خپلي اوښکي نه وي توی کړي لکه په **لوی استاد پوهاند رشاد** پسي.

زه د وردګو ولایت د چک ادبي بهیر او د چک روزنتون په استازیتوب د دې لوی استاد له کورنۍ سره په دې لویه غمیزه کي ځان شریک بولم او د ستر کندهار مېړنیو او فرهنګپالو خلکو ته د دې لویي ادبي او علمي ضایعې تسلیت وایم.



تر هر څه وړاندي د **لوی استاد اروښاد اکاډمیسین پوهاند علامه رشاد بابا** پاک او مبارک روح ته لاس په دعا یم، چي جنت فردوس دې په نصیب او قبر دې منور سي.

**آمین یا رب العلمین**



**بسم الله افغانمل مومند**

دا چي د کندهار د اطلاعاتو او کلتور محترم ریاست له لوري د هیواد د دغه ستر او درانه علمي او ادبي شخصیت لوی استاد اروښاد **علامه رشاد صاحب** د علمي او ادبي، تاریخي او اجتماعي ژوند په اړه راته نظرپاڼه راورسېده. تر څو د درانه استاد علامه رشاد بابا په اړه د خپل ناچیز توان په اندازه یو څه ولیکم. که څه هم زه د دې وړتیا نه لرم چي د دومره ستر او نابغه انسان په باب څه ولیکم یا څه ووایم، خو خدای پاک ﷻ دي راته توفیق راکړي تر څو د علامه رشاد بابا حق څه نا څه ادا کړای سم. له همدې کبله د کندهار د اطلاعاتو کلتور ریاست د محترم مقام د دغه ستر خدمت، ستر نوښت او زیار و زحمت څخه د زړه له کومي مننه کوم.

کور یې ودان، پر ژوند یې برکت چې په خپلو ناچیزو او نیمګړو امکاناتو سره دغه ستر او تاریخي خدمت ته ملا تړلې او لیکې نغښتي دي، هیله ده چې په دې برخه کې زموږ ټول فرهنګیان او لیکوالان، ادیبان او عالمان د خپل درانه **علامه رشاد بابا** په یاد لیکنې او څېړنې، یادغونډې او پلټنې وکړي، تر څو د خپل ستر او درانه استاد او مهربان لارښود لوی رشاد حق ادا کړي .

څرنګه چې لوی استاد اروابښاد علامه رشاد بابا د خپلو علمي څېړنو، مصروفیتونو او خدمتونو تر څنګ د خپل هیواد او خلکو سره د ځانګړې مینې او خلوص په اساس د هیواد په ملي او ټولنیزو مسایلو او موضوعاتو کې هم رغنده او ارزښتناک رول درلود، ځکه د لوی استاد علامه رشاد بابا سره تل د خپلو خلکو او وطن غم او درد موجود و . هغه همېشه خپلو خلکو او دولتي چارواکو او حکامو ته نیکې او ګټورې مشورې ورکولې او د خپل ولس د سوکالۍ اوآرامۍ او سرلوړۍ لپاره یې هاند او هڅې کولې .

د **اروابښاد استاد علامه رشاد بابا** د کور دروازه په کابل او کندهار کې د هر افغان او هیوادوال پر مخ په شپه او ورځ پرانیستې وه، هغه په ډېره مهرباني، خواخوږي او حوصله مندي د خپلو وطنوالو سره خبرې او د زړه خواله کوله . هر چا او هر وطنوال ته یې د خپل اولاد، ورور او دوست په ستر ګه کتل، هغه ته دا مهمه نه وه چې ته تور یې او که سپین، خو مهمه ورته دا وه چې ظالم یې که مظلوم .

**علامه رشاد بابا** د هر مظلوم او بېچاره سره ځانګړې خواخوږي او همدردي درلوده، په همدې اساس اروابښاد **استاد علامه رشاد بابا** چې په واقعیت کې یو مهربان پلار او مهربان انسان و د هر مظلوم او معصوم، بېنوا او بېچاره په درد دردمند او په غم غمجن و . ځکه هغه د خپلو خلکو نېکمرغي او بدمرغي د ځان نېکمرغي او بدمرغي ګڼله .

بناً د بېوزلو او بېوسو، خوارانو او مظلومانو د دغه ستر او مهربان غمخور نه جبرانېدونکې تشه دې لوی څښتن ﷻ په یوه همدا ډول مهربان غمخور ډکه کړي .

**آمین ثم آمین**



## فاضل استاد علامه رشاد

ورمه همت اسحاقي

د روان کال د لېندۍ د میاشتې یوولسمه نېټه وه، د ماخوستن وخت و، د کور په څه کار اخته وم او د افغان آزادي راډیو خپرونو ته مې غوږ نیولی و چې ناڅاپه مې له دغې راډیو څخه د یوه داسې انسان د مړینې خبر تر غوږ سو چې د علم او فرهنګ یو لویه هستي وه .

هو ! راډیو وویل چې :

"**فاضل استاد پوهاند اکاډمیسین علامه عبدالشکور رشاد** د تل لپاره د دې فاني نړۍ څخه ستر ګې پټې کړې" .

**انا لله و انا الیه راجعون**

اروابناد **علامه عبدالشکور رشاد** فاضل استاد، ستر ادبپوهاند، پیاوړی تاریخپوه، لوی مځکپوه، نامتو څېړونکی، وتلی ژبپوه، خوږ ژبی شاعر، ملي مبارز، د ښو اخلاقو خاوند، د خپل اولس په درد غمجن علامه و .

**علامه رشاد** د علم او فرهنگ یوه داسي مدرسه وه چي په بېلو بېلو پوهنو کي یې په سلگونو شاگردان روزلي دي. کوم چي زموږ هیواد ته د ډیرو ښو کارونو او خدمتونو مصدر سوي دي .

هو ! **علامه رشاد** خو ډېر شاگردان روزلي دي. نو اوس چي خدای بخښلی **رشاد** نسته د ده پر شاگردانو او لارویانو ده چي د **علامه رشاد** پر لار روان سي. هغه غونډي عملونه او کارونه تر سره کړي او زموږ دا د علم او پوهي روڼا ته ډېر احتیاج هیواد د علم او پوهي په رڼا په ربنتیا او د ربنتینو او پوهو، باشعورو او دردمنو وګړو په څېر روښانه کړي او په علمي زیار او پوهنیز کوښښ هر یو له ځانه یو بل "**رشاد**" جوړ کړي . هڅه او هاند وکړي چي اولس مو له نورو اولسونو په شان د تمدن پر لور روان سي ، او له دې روان علمي او ادبي فقره یې وژغوري .

که د **علامه رشاد** لارویان او د پوهي او هنر څښتنان د **علامه رشاد** د دغه فرهنگ او ادب د کاروان ښه ځاروانان سي ، هلته به نو پر ځانو باندي د علامه رشاد د ربنتینو لارویانو او مینه والو د نامه د ایښولو حق ولري. او د **علامه رشاد** روح به یې خوښ او ښاد کړی وي .



غالباً شپاړس کاله وړاندي د مني په یوه مازیگر د ارگ په بازار کي پر یوه پښتو کتاب پېښ سوم چي(پښتو ادبیات) نومېدی او په غالب گومان د اووم ټولگي لپاره لیکل سوی و ، ما تازه_تازه لیک او لوست زده کړی و ، خو لوستل مي تر لیکلو ښه زده وه ، په هغه روځ مي هغه د خلگو پر چم یو څه خوشمړي په جېب کي وې او هغه هم له یوې میاشتي انتظار وروسته د (غولک) تر ماتولو په لاس راغلي وې ، نه پوهېږم چي ولي مي په جېب کي اچولي وې؟ کتاب مي خلاص کړ او چي پاڼي مي یې واړولې ، راواړولې نو خورا ښه شعرونه او لیکني پکښې وې . خدای سته چي په لیکنو خو مي سر نه خلاصېدی ، خو شعر له هماغه وخته خوند را کاوه ، کتاب مي نه پوهېږم چي په څو افغانۍ رانیوئ او سیده کور ته راغلم ، په کور کي مي گونده ور ته کت کړه او یو_یو شعر مي یې په خوند_خوند لوست ، د شاعرانو له شعرونو سره د هغوی عکسونه هم ول ، د استاد بېنوا عکس او شعر مي ولیدی ، د بېنوا تخلص ته اریان سوم ، ځکه چي ما ته به مور هر وخت زما د شیطانۍ او شوخي پر مهال ویل چي "بېنوا سې" ، مور ته مي وویل چي دا "بېنوا" څه مانا لري ، دلته د یو شاعر نوم بېنوا دی او دا لکه چي ډېره ښه مانا لري ، مور خواره مي هم له دغو شیانو سره نابلده وه او را ته ویې ویل چي "وی ! دا خوار کی لکه چي په دا خواني بېنوا سوی دی" تر هغو شعرونو وروسته مي د **علامه عبدالشکور رشاد** عکس او شعر تر ستر گو سو ، مور ته مي وویل چي "ها ، ته دا عکس و گوره څنگه غټي عینکي یې کړي دي دا لکه چي ډېر پوه او غټ سړی دی" مور مي را ته وویل چي هو شاید یو غټ سړی به وي . داسي مي په یاد دي لکه همدا اوس چي دغه نظر کاږم چي د



**عبدالقدیم پتیال**

**علامه رشاد** یو شعر مې په خورا خوند_خوند ولوست چې د سر بیت یې داسې و:

**چې پر کوټ د کالنجر خپله سپاه**
**خېروله پښتانه غازي شــېر شاه**

خدای سته چې زه دغه د "کوټ" کلمې ته ډېر اریان وم، ځکه چې ما ول کوټ به یې هوار کړی وي او خپله سپاه به یې پر دغه کوټ خېروله او د سپاه کلمه مې لا د مور زده وه او مانا یې را ته کړې وه، باور وکړئ زه دا د علامه رشاد بابا عکس ته هغه وخت ډېر اریان وم او په تېره عینکو ته یې او دا به مې له خانه سره ویل چې دا به ښایي یو پاچا او یا یو بل غټ پوه وي.

نن روځ هم زه افسوس کوم چې بیا هم شپاړس کاله وروسته نه یم پوه سوی چې علامه رشاد بابا څونه غټ سړی و، څونه پوه و، او څونه لوی عالم و، دا به ښایي زما ناپوهي، کمزوري او جهالت وي چې زه **علامه رشاد بابا** اوس هم په سمې مانا نه پېژنم او یا ښایي دا به د علامه رشاد بابا نهایت لویي او پوهي وي چې ما غوندي ناوسه کسان یې په پېژندلو کې پاته راځي.

داسې یو ناپوه چې د **علامه رشاد بابا** په شخصیت او علمیت کې هیڅ مالومات و نه لري او نه دونه توان ور سره وي چې د دوی لویي او علمي اوځاره کړای سي، نو هغه چادي به څنګه د دغه لوی عالم په باب خپل نظر ولیکي؟

د **علامه رشاد بابا** د مرګ پر دریمه روځ ماښام ګران پښتون ورور صادق خان ژړک د نظر په باب خبره را ته وکړه او دم په ګړي یې کتابچه او قلم په لاس کې راکړل چې د **علامه رشاد بابا** په اړه نظر ولیکم چې دوی په خپله مجله(لمبه) کې چاپوئ، له هغه ځخه مې په دې بهانه ځان خلاص کړ چې ما ول زه په قرآن که په هیڅ شي پوهېږم، ځکه زه سرسام او ګنګس یم او په دغه حال کې څه ولیکم، ګران صادق ژړک را ته ټینګ سو او ویل یې چې همدا خبري ولیکه او ما هم چې رښتیا سي په همدا ډول خپلې خبري د نظر په ډول ولیکلې.

ګران مطیع الله خان روهیال خو_خو ځله د نظر را ته وویل، خو چې رښتیا سي ډېر وارخطا وم چې زه به خپل نظر د ددغه لوی استاد په باب څه ډول ولیکم، خو انکار هم هیڅ ګټه نه لرله.

په لنډ ډول که ووایم نو **علامه رشاد** د علمي نړی هغه ځلانده او رښانه ډېوه وه چې بېلګه پیدا کول یې قرنونه_قرنونه وخت غواړي، لکه علامه رشاد بابا چې د استاد الفت په باب ویلي دي چې:

**زمــــانه چې پر مدار د کیــــنې راسي**
**د کـــــمال پر منارو ټــکي پــرې باسي**
**ډېر کلونه دي په کار چې په دې ملک کې**
**بیا الفت غـــوندي شېوا شــاعر پیدا سي**

نن روځ موږ دا ویلای سو چې هو! کله چې زمانه د کینې پر مدار راسي نو **علامه رشاد** غوندي عالمان او نوابغ تر تورو خاورو لاندي کاندي. بیا **علامه رشاد بابا** غوندي عالمان په ظاهري ډول د خاورو خاګاه کاندي. بیا **علامه رشاد بابا** غوندي ستري ستې له مظلومو ولسونو څخه بېل کاندي، بیا **علامه رشاد بابا** غوندي

خواخوږي د یتیم ولس له ټوله جلا کاندي او مظلوم . یتیم . ړنګي او نتلي ولس له دغسي معنوي پلرونو او خواخوږو څخه محروم کاندي .

**علامه رشاد بابا** د خپل اویا کلن علمي ژوند په جریان کي افغان ملت ته داسي چوپړ وکړ چي هغه د استاد بېنوا خبره چي :

"څو چي دا ځمکه آسمان وي،
څو چي دا جهان ودان وي
څو چي ژوند په دې جهان وي"

نو د **علامه رشاد بابا** خدمت به هېر نکړای سي . د **علامه رشاد بابا** د احسان بار به یې پر اوږو پروت وي .

افسوس چي نن روح زموږ له منځه د **علامه رشاد** د روند او له برمه ډک وجود تللی دی . نن که څوک د لوی کنیشکا په باب پوښتني کوي . نو له چا به یې وکړي . نن که څوک د سکندر مقدوني د ماتي کیسې اروي . نو له چا به یې واروي . نن که څوک خونخوار چنګېز د وحشتونو په باب مالومات غواړي . نو له چا به یې وغواړي ؟

**علامه رشاد** د علم داسي بحر ته ور ته و چي په ځان کي هر ډول مرغلري او جواهرات لري .

**علامه رشاد** د علمي نړۍ هغه نازولی نابغه و . چي ټولو مانیزو پاچهانو ور ته د یوه افسانوي شهزاده په توګه کتل .

**علامه رشاد** د علمي نړۍ هغه له برمه ډکه او زرینه صفحه وه چي تر تله به د نوابغو په کتاب کي تر ډېرو پېژندلیګونو د دوی پېژندلیک خلاند او زرین او رنګین وي .

مرګ یوې داسي زلزلې ته ور ته دی چي پر هره سیمه چي یې ګذر وسو . نو هر څه له خاورو سره خاوري کوي . د مرګ له نامه څخه څوک انکار نه سي کولای . شایي د هیچا به هم دا نوم نه خوښیږي . خو له ناچاریه او بېوسیه دا تل وایي چي مرګ حق دی او حق نوم د خدای دی . مرګ یوه داسي بې پولي توپان ته ورته دی چي نه ساحل ګوري . نه ټاپو . نه ګاره او نه هم ډبره . د بشریت لوی استازي حضرت محمد ﷺ هم د مرګ خوند کتلی او که نه دا خو د هیڅ امتي نه پېرزو کېدله چي د الهي نور دغه ستره او ځلانده ډېوه دي یې له ریګنو ځمکو او شېلو او درو څخه تر خاورو لاندي سي . مرګ ته تسلیمېدل څه اسانه خبره نه ده ، خو چاره څه ده؟ خدای پاک انسان دې نړۍ ته د یوه امانت په توګه رالېږلی دی او هر کله چي پر هر شي د امانت نوم یاد کړل سو . نو دا مانا لري چي یو وخت نه . یو وخت به لا دغه امانت بیر ته سپارل کیږي . مرګ د امانت د بیر ته اخیستلو نوم دی .

د چا ذا خوښه وه چي د **علامه رشاد** له ویاړه . له ملي غروره ډکه مجسمه دي دې تر خاورو لاندي سي؟

د چا دا خوښه وه چي د **علامه رشاد** غوندي ستره هستي دي د دې نړۍ له بزمي او رزمي میخانې څخه د تل لپاره جلا سي؟

د چا دا خوښه وه چي د **علامه رشاد** ستره تنه دي نوره په ډوری کي کنبېسول سي او د تل لپاره ذي د خبرخانې مینې په یوه برخه کي د یوه عالم خونه بې خاونده تشه توره ودریږي؟

د چا دا خوښه وه چې د جابرو واکمنو او پر دیو پر غلګرو په وړاندې ستر سنګر دې نور له یوه سر تیرې اتل څخه بې برخې سي ؟

د چا دا خوښه وه چې یوه له معنویته او الهي کرامته ډکه توره دې له یوه غښتلي موټ او بازو څخه بې برخې سي او میر څمنو ته دې لاره هواره سي ، چې څه چې کوي هغه دې وکړي ؟

خو ـ افسوس !

موږ هغه هستې نن له لاسه ور کړې ده ، موږ هغه د علم په څواک غښتلې تنه په خپلو لاسونو خاورو ته سپارلې ده . موږ د هغه **لوی استاد** له برمه ډک نظر او ښکلې ستر ګې نن په خپلو لاسونو ور پټې کړې دي . موږ هغه د علم ستره مجسمه نن روح په اوښلنو ستر ګو د یوې ډېر یني ځمکې په غیږه کې د امانت په توګه ایښې ده .

نن موږ له هغسې سترې هستې څخه بې برخې یو .

نن موږ د هغه درونـد او لـه کیفـه ډک ږغ نـور پـه خپلـو ګناهګـارو غوږونـو نـه سـو اروېدلای .

نن موږ هر څه له لاسه ور کړي دي .

نن موږ هیڅ نه لرو .

نن موږ ته یوازې سلګی او ژړا را پاته ده .

نن موږ بې لاسو موښلو او واخ او ویش پر ته هیڅ نه سو کولای .

نن موږ بې وسه سوي یو . پر چا نه سو ژړلای ، هغه چې ناز مو پر کاوه ، هغه چې په داد مو ر سېدی ، هغه چې زموږ په خبرو پوهېدی ، هغه چې زموږ پر سر یې د مینې او خواخوږې لاس را تېراوه ، هغه چې پر مخ او تندي یې په مینه او شفقت مچولو ، هغه چې په غېږه کې یې نیولو ، هغه چې زموږ د دښمن مخته زموږ پر ځای در ېدی ، هغه چې موږ یې لکه ماشومان په للو ـ للو بیده ولو او نه یې غوښتل چې بدخوابه سو ، هغه چې د یوه مهربان پلار غونډې یې نصیحت او لارښوونه را ته کوله ، هغه چې د یوې خواخوږې مور غونډې یې په غېږه کې نیولو .

نن موږ هغه انسان له لاسه ور کړی دی ، نن موږ داسې څوک نه لرو چې خپل رنځ او درد ور ته ووایو ، نن موږ داسې څوک نه لرو چې خپل د زړه زخـم ور وښیو او بالاخره موږ داسې څوک نه لرو چې موږ ته دې للو ـ للو او په خار ـ خار ووایي .

موږ به د تل لپاره د **علامه رشاد** نوراني څېره بیا و نه وینو .

موږ به د تل لپاره بیا د **علامه رشاد** ځلاندې او له نوره ډکې ستر ګې و نه وینو .

موږ تـه بیـا د **علامه رشاد** غونـډې پراخه غېـره د روغبـړ پـه حـال کـې نـه سـې خلاصه .

موږ نن هیڅ نه لرو .

موږ نن بېوزله سوي یو .

موږ ته نن بې له ژړا بل څه نه دي راپاته .

اجله څه دې ور ته فکر سو چې راغلې ور ته !؟

تا به یو څه وخت لا پرې ایښی زموږ په منځ کې وای دی .



درونند استاد پوهاند **علامه عبدالشکور رشاد** ... زموږ د هیواد د تاریخپوهنې، ژبوهنې، ادبپوهنې او ټولنپوهنې د آسمان هغه ځلانده ستوری و چې نوم به يې د لمر په شان د تل لپاره د علم او پوهې په آسمان کې ځلیږي .



**عبدالتواب بالاکرزی**

**استاد** هغه نېکمرغه انسان و چې خپل د ژوند زياته برخه يې د هيواد د بچيانو د روزلو او د پښتو ژبې خدمت ته وقف کړې وه، د پښتو ژبې د سمون لپاره يې بېساري خدمتونه کړي دي، پر پښتو، پښتونولي او افغانيت باندي يو مين شخصيت و .

د عمر تر پايه پوري يې قلم د لاسه ايسته نکړ، او د ژوندانه تر پايه پوري يې هغه د هيواد د بچيانو د معلوماتو د اضافه کولو لپاره وچلاوه .

**استاد** زموږ وياړ و، او افغانان به تل د هغوی په نامه وياړي، په پای کي د رب العزت له دربار څخه د جنت فردوس غوښتنه ور ته کوم .

**اروا دې ښاده وي!**



## بابا د تحقیق څه سو؟



**نجيب الله هوتکي**

هغه چي د پښتو په پښتانه خدمت يې د پښتانه دستار ستړي ولونه د ستړو اوږو له پاسه يو پر بل کاږه واږه پراته وو .

هغه چي کندهاري قلم يې د کندهاري لاسونو په کندهاري گوتو کي کندهاري چلېده .

هغه چي د خپل خواږه عمر د سمندر له پاسه د عظمت په بار درنه بېړۍ يې د تاريخ او ژبي د ورک ساحل پر لور په استادۍ چلول، هغه چي د ورکو پښتنو د ورکو هديرو دننه ورکو پښتنو مړو ته مسيحا گرځېده .

هغه چي پښتني پېغلو يې د قدمو خاوره د خوردې په څېر ساتله .

هغه چي په تورو ماښامونو کي يې د خپل ژړېدلي قلم سره په ژړا د خواږه خوب خوږې ناوي ته د ثلاثه طلاق، طلاق ورکړی .

هغه چي د سپين کاغذ پر سينه يې د اوږدلو ياقوتو په بار خپله مست اوښان په بار بدو بار بدل .

هغه چي د پوهي په کوثر يې دبې بيابان پر بيابانو جل وهلي کسان اوبېدل .

هغه چي په ليدو يې له خوشحالی نه پښتانه زړونه پښتانه نخېدل .

هغه چي له تخليق نه پر تحقيق مين و .

هو !

دا د همدغي رشيدي قافلې پښتون **رشاد** و، چي له خپل ستړي ژوندانه نه په رخصت کي يې د سکون په اميد د لوی او درانه کندهار په غيږ کي د ولاړ درانه غره د درنې لمني په درنه لمن کي د ارام په اميد له دې فاني دنيا نه په کوچېدو، وکوچېد، چي د کوچ په دې محشر کي د ده د ادب د غوړېدلي سترخوان د نمک، د نمک خورو چيغو د دې درانه ښار درانه دېوالونه لړزول او د خپل رشيد مرشد د

رشید سفر په خپګان د لیونیو په څېر، د ژبې په مات قلم کله ناست، کله ولاړ، کله د ښخوا او کله هاخوا په خولو غرق څغلېدل .

او د ویر د دې قیامت په فاتحه کې ښایسته اسمان هم د خپل ښکلي مخ پر پښتانه اننګیو د غم او ویر تور پلو راکش کړ او په نیولي پلو یې د رشید لښکر د سالار پر سفر د فراق له غمه د یاقوتو په څېر سرې، سرې اوښکې اورولې او د نیمه خوا خزان سرو او ژړو ګلونو هم د پښتانه تابوت د ولاړو د ښوالونو پر طواف خپل سرونه له نیمه خوا تنه پر ښکول .

هو !

همداسې عرصات و، او د عرصات په دې عرصاتي میدان کې د رکوع په څېر ولاړه کیږدۍ چې د خپلو مراند د مېخونو په خولو یې توري خاوري منډلې، د راغلو مېلمنو لپاره په داسې حال ولاړه وه چې د خزان په نیمه خوا خزاني بادونو یې د صبر په امید د **علامه** د جدایي له غمه خړ پېڅولونه د دمونو په دود په دم دمول او په غېږ کې کښېنولي راغلي خدای خوار کړي خواران یې، د هغې لارې په څار نور هم ژړه ول کوم چې د ګلونو په درمن غرق تابوت هغه چې د دې پښتانه غره په لمن کې د پر تې غونډۍ پر سر، د ښېږ نیکه د دوعا په برکت د خدای له لوري د لور ښدلو پښتنو په پښتانه اتفاق د پښتانه یادګار په یاد په ښخېدو راته .

هو !

د پښتانه په نړ ښدلي جهان کې د نړ ښدلو اوږو له پاسه د وقار او عظمت په دولت بار تابوت د دې درانه غره د درنې لمنې له پاسه د درانه ابدي ارام لپاره په داسې حال کې چې د ادب او تاریخ د لېونیو لېونی ژړا د دوی د سر له پاسه ولاړ پښتون اسمان په لیونیو چیغو او ژړا سر کړ، راوړی تابوت د سکون په امید په درنښت کښېښودل سو، څو د دې درانه غره پر لمن پر ته غونډۍ یې د وجود ټول کاینات د قران د تورو په څېر د خپل ځیګر په حجره کې د ابد په مېلمه توب په مېلمستیا مېلمه کړي .





عبدالکریم هوتکي

**ارواښاد علامه رشاد** یو له هغو سترو شخصیتونو څخه و چې زموږ د تاریخ ژېړوونکي هیواد په پراخه معاصره لمن کې یې لومړی مقام درلود، خو د تقدیر د پر ښکړي سره سم د دې نابودي نړۍ څخه د تل لپاره بېل سو .

اروا دې ښاده او یاد دې تازه وي

**ارواښاد علامه رشاد** تکړه تاریخپوه، څېړونکی، ادبپوه، ژبپوه او خوږ ژبی شاعر و، د هغوی د فرهنګي هڅو او کوښښونو وړانګو نه یوازې کندهار بلکې د افغانستان، منځنۍ آسیا او په ټولیزه کچه د ټولې نړۍ فرهنګي ټولنې او په دغو فرهنګي ټولنو کې د ټولو عالمانو ذهنیتونه روښانه کړي وه، په اوسني افغانستان کې د ادبیاتو، ژبپوهنې، تاریخپوهنې او داسې نورو علومو ټول استادان، پوهاندان او ماستران د **ارواښاد رشاد** د روزنې او پالنې ثمره ده. **علامه رشاد** د ادبیاتو او تاریخ لوی استاد و، د نړۍ په مختلفو علمي اکاډیمیو کې یې په مختلفو ژبو درس ورکړی او شاګردان

يې روزلي وه . هغوی خپل ټول ژوند د کتاب، ليکنې، څېړنې، او مطالعې په خوا کې تېر کړ، چې په پايله کې يې د دې هيواد ملي او رسمي ژبې "پښتو" ته د پام وړ آثار پرې ايښي، چې ځينو يې چاپې بڼه غوره کړې او ځينې لا د اروابښاد د پراخې او ستري لارې لارويانو ته ستر ګې په لاره دي چې د چاپ په جامه يې وپسولي .

**اروابښاد پوهاند علامه رشاد** زموږ لپاره يو ژوندی پوهنتون و، د هغوی ټولي خبري د هر اروېدونکي پر زړه باندې په ځانګړې انداز اثر کاوه، او بل دا چې کوم چا چې به د هغوی څخه پوښتنه وکړه هغوی **اروابښاد** به په ډېر ورين تندي او پراخه حوصله مندي يو عالمانه او قناعت بخشه جواب ورکاوه . **اوراښاد استاد** په ټولو روزنيزو، پوهنيز، څېړنيزو او حتی په خبرو کې د پوره احتياط څخه کار اخيست، چې همدغه د پوره احتياط ثمره ده چې د هغوی ټول آثار که چاپ دي او که ناچاپ په ټول پوره او د هر ډول شکوکو څخه خلاص دي .

په دې وروستيو کې چې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست له لوري يوه پراخه څېړنغونډه جوړه سوې وه په نوموړې څېړنغونډه کې د **اروابښاد استاد رشاد** د لوی کندهار په مختلفو برخو کې معلوماتو په رښتيا سره زه د حيرانتيا پر ټغر کښېنولم، او د هغوی د دغه ډول حافظې څخه زيات متاثره سوم .

خو په ډېر تاسف سره د دې يادونه کوم چې زموږ په ټولنه کې د عالم، علم، او کتاب قدر نسته، څکه په اوسمهال کې هم زموږ په ټولنه کې ځينې داسې کسان سته چې د **استاد رشاد** د نامه سره نابلده دي، او نه يې پېژني .

په پای کې د اطلاعاتو او کلتور وزارت د اوسمهاله چارواکو څخه هيله لرم چې د **پوهاند علامه رشاد** ټول ناچاپه آثار چاپ او د استفادې لپاره يې هيوادوالو ته وړاندې کړي، د کندهار د چارواکو څخه دا هيله لرم چې د ژمني سره سم د کندهار پوهنتون د "**علامه رشاد پوهنتون**" په نامه ونوموي، وروستی وړاندې مې دا دی چې د **علامه رشاد** غني کتابتون کندهار ته رانقل کړه سي او د يوې لويې اکاډيمې په بڼه په کندهار کې د علم او کتاب د مينانو پر مخ پرانستل سي، چې د نوموړې اکاډيمې څخه به د **استاد رشاد** غوندي نورو ټولو پوهانو د ارواخوښونې له پاره وخت پر وخت د هغوی د سترو کارنامو يادونه کيږي .



## د علامه رشاد په ياد

**ډېوه همت**

هغه ورځ ماپښين و، خو ماښام راته ښکاره سو، رڼا وه خو تياره راته وايسېدل، خوشحاله وم خو خوابدې سوم، دا ولې ؟

دا لــه دې املــه چــې خبــره ســوم چــې د وطــن د علــم يــوه بلــه ډېــوه مو ګل سوه .

هو ! **علامه رشاد**، دا د هيواد د پوهې او فضيلت ډېوه او د علم او ادب روڼا د تل لپاره نوره له روڼا خپرولو تم سوه .

هو ! هغه ستر انسان له دې نړۍ څخه د تل لپاره ولاړ، چې د افغاني فرهنګ سمسورتيا او پرمختګ يې د ژوند يوازينۍ هيله او آرمان و، او د دغه ستر آرمان د

پوره کولو لپاره یې پوره نهه شپېته کاله پرله پسې علمي او ادبي کار او زیار پر مخ بوت .

هغه څوک له دې نړۍ ولاړ چې خپل ټول ژوند یې د وطن په خدمت کې د راتلونکي نسل په روزنه او د افغاني فرهنګ د خپرېدو او غوړېدو لپاره وقف کړی و .

هغه څوک له دې نړۍ ولاړ، چې د علم او پوهې د پرمختګ او خپرېدو لپاره یې ډیري هڅې کړي وې، او ټول عمر یې په لیکلو او تالیف تېر کړ .

دغه لوی عالم، ستر شخصیت، پیاوړی څېړونکی، ستر لیکوال، منلی شاعر، تکړه ادیبوه، وتلی ژبپوه، نوماند تاریخپوه، **فاضل استاد اکاډمیسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد** د خپل انساني رسالت تر بشپړولو وروسته د حق د رحمت ګاونډی سو او دلته یې د څه دپاسه (۱۰۰) چاپ او ناچاپه آثارو په پرېښودلو سره خپل نوم په تل تر تله ژوندیو کې ثبت کړ .

اوس دې خدای ﷻ وکړي چې شاګردان یې نور رشادان سي او دا هیواد یې نور لا هم په علم او پوهه سمسور او ودان سي .




نورالله نوري

د درانه استاد علامه رشاد بابا د یادښت تلپاتې مینه به تر ډېره د فرهنګپالو په زړونو کښې پاته وي، او دې پاڼې ته ورته ډیري لیکنې به د هغوی د یادښت له پاره په کتابونو کښي راغونډې سي . خو زه بل ډول فکر د کاغذ پر مخ انځوروم، هغه دا چې کاش ! د دې پاڼې د تورولو پر ځای هر فرهنګي ځلمي د درانه استاد عبدالشکور رشاد ... پر فرهنګي بهیر یو بل قدم ایښی وای او یو قدم نور هم د هغوی په فرهنګي ورشو کښي وړاندي تللي وای .

زه که څه هم دا نوښت بې ګټې نه بولم خو دا اړینه بولم تر څو په عملي بڼه د ارواښاد په فرهنګي انقلاب کوم چې هیڅ زبر څواک یې مخه نه ده نیولې ورګډ سو، د دې تر څنګ ویلای سو چې هغه مهال به مو د هغوی د فرهنګي میراث څخه دروند رسالت تر سره کړی وي چې د هغوی د اهمیت څخه ډک آثار د کتابونو په ډول د خپلو کتابتونونو زیور وګرځوو، او فرهنګپال پرې سترګې په روڼې کړي . دې هدف ته رسېدل د ځوان فرهنګي کهول موخه وبولو او په دې لاره کښي ځانونه ونه سپموو .

د هغوی په باب زما یوازینی خاطره چې تل به یې یاد ولرم او د زیاتو نورو به هم یاد وي داده :

د هغوی په ژوند دوه ځله په کابل کښې د هغوی مېنې ته ورغلی یم، د ورتګ پر مهال دروند استاد د خپلې خونې د دالان تر دروازې پوري د هرکلي له پاره راغلی او وروسته چې به مو اجازه ورڅخه وغوښته چې ورڅخه رخصت سو بیا به هم تر هغې دروازې پوري راسره راتلی .

زما په اند په دې کښې هم د علامه رشاد بابا یو لوی هدف نغښتی و، هغه دا چې پښتون قوم پلرنی ورپاته یو میراث چې مېلمه پالنه ده هیڅکله هېره نه کړي .





**صادق ژړک / کوټه**

د علامه رشاد بابا د علمیت. تاریخ پوهني، ادبپوهني، ژبپوهني او ټولنپوهني په اړه په یوه پاڼه کي زه خپل نظر هیڅکله نه سم څرگندولای. هغه ځکه چي علامه رشاد بابا په خپل ژوند کي د پښتو او پښتنو له پاره دومره زیات کار وکړ، چي هغه کار ستري ستري اکاډمی هم نه سي کولای، نو زه به د علامه رشاد بابا په باب له ده سره یوه و نیمه خاطره بیان کړم:

کله چي "کندهار د تاریخ په اوږدو کښي" تر سرلیک لاندي په کندهار کي څېړنغونډه کېده نو زه او څو ملگري کندهار ته ولاړو، د بېنوا فرهنگي ټولني په دفتر کي ناست وم چي علامه بابا راغی تر لږ وخت کښېنستلو وروسته یې خپل کور چي اوس په رشاد کلنیک سره مشهور دی هلته بوتلو، نو نه مي دي هېر چي موږ خو یې د خبرو تږي وو خو علامه بابا د خبرو په منځ کي څو واره په محمدنبي تدبیر باندي و ښاغلي عبدالمجید خان بابي صاحبْ ته تلیفون وکړ او ورته وبه یې ویل چي ژړک راغلی دی او د کوټي نور ملگري هم ورسره دي، ما که به هر څومره ورته وویل چي استاده زموږ د ځای بندوبست سوی دی، خو دا د هغوی مینه او مېلمه پالنه وه چي زموږ سره یې کوله اوس به څوک په کندهار کي چاته تلیفون کوي چي مېلمانه راغلي دي. نو واقعاً د علامه بابا په مرگ ټوله پښتونخوا یتیمه سوه.

بله خاطره دا چي د علامه رشاد بابا سره مو په رشاد کلنیک، د څېړنغونډي په جریان او تر څېړنغونډي وروسته ډېري پوښتني کړي دي خو د علامه رشاد بابا به بس دغه یوه غوښتنه وه چي: ژړکه ! د خپلي سیمي توري خوندي کړئ، ملگري وهڅوئ چي دغه کار وکړي او ویل به یې چي تاسو خو ځوانان یاست او دغه به یې هم راته ویل چي "لمبه" در څخه بنده نه سي داسي ډېري لارښووني وې چي علامه بابا به راته کولې.

زه نن د علامه رشاد بابا د روح سره ژمنه کوم چي انشاء الله "لمبه" به نه مري او تر څو چي مي په تن کي یو ټکی وینه هم چلیږي زه به د علامه بابا د لارښوونو په رڼا کي خپلو کارونو ته دوام ورکوم.

یوه بله خاطره دا چي کله به د علامه رشاد بابا تر مخ د لوی استاد علامه حبیبي صاحب نوم یاد سو او یا به یې خپله واخیست نو به یې دستي دغه ویل "خدای دي پر ورحمیږي !"

یوه بله خبره هم د یادولو وړ گڼم هغه دا چي "کندهار د تاریخ په اوږدو کښي "د څېړنغونډي د پیل کېدو په مراسمو کښي علامه رشاد بابا په خپله وینا کي وویل چي د لوی کندهار آخري کلا د دوکی کلا ده او له دولت څخه یې دغه غوښتنه وکړه چي د لوی افغانستان (د احمد شاه بابا د وختو) نقشه باید چاپ سي، دغه غوښتنه خو یې په ژوند کي چا پوره نه کړه او خدای خبر چي اوس به یې څوک دغه غوښتنه پوره کړي او که نه؟

خدای دي قبر منور او د جنت ماڼی په نصیب کړي



# د لوی استاد پوهاند رشاد صاحب خاطره



محمدسرور

رښتیني لویان او پوهان د لمر غوندي دي چي نور او روښنايي هر لور ته خلیږي، او د معنوي فیض څخه یې د چاپېریال خلک ګټه اخلي، که هر څوندي د هغوی په اړه پلټنه وسي د هغوی لويي لا راڅر ګندیږي . دا ځکه چي ټولنه د هر څه په اړه رښتیني قضاوت کوي، او د کتونکو له نظره څخه پټ نه پاتیږي .

اروا ښاد پوهاند علامه رشاد د اوس مهال د ځلاندو ځیرو څخه وٌ او زه چي د ۱۵ کلونو را پدېخوا د افغانستان د علومو په اکاډمی کښي دنده سرته رسوم هغوی پېژنم .

پوهاند رشاد صاحب یو حلیم، قدردانه، د ښو اخلاقو او لوړي طبع لرونکی وٌ . د نفس ستر توب یې د بیدل او سنايي په ډول وٌ، ککرۍ یې د چا پر درشل نه ښله، و چاته یې چاپلوسي او غوړه مالي نه کول تل یې د حق دفاع کوله . هیواد او خاوره ور ته ګرانه او پر ځان یې تکیه وه او په مېړانه یې ژوند کاوه، لکه :

رحمان هسي بې وقوف سوداګر نه دی
چي د دین متاع بدله په دینار کا

هیڅکله د چوکی مقام او د هغه د نورو ښه والي او غوره والي تر اغیزي لاندي نه راتلی. هیڅ ځای ته یې رویداد نه لېږی . د ځان پلورو سره یې لکه زمری منګول او خپېره ورکول . او د هیواد د لوړو مصلحتونو او د هیواد د ویاړلو لویو اشخاصو څخه یې ملاتړ کاوه، لکه چي ټولو ته څرګنده ده، نوموړي استاد د استادانو استاد وٌ، او زیاترو پوهانو هغوی ته مراجعه کول او خپلي لیکني او آثار یې په اصلاح کوله . استاد د دایره المعارف غوندي وٌ، او په زیاترو موادو کښي یې بشپړه معلومات لرل .

څرنګه چي ما د ژبو په زده کړه کي زیاته مینه او علاقه درلوده، ځیني وختونه د هغوی له خبرو ګټمن کېدم، په یاد لرم : یوه ورځ مي د استاد څخه د درهم د کلمې معنی وپوښته، سمدلاسه یې وفرمایل : د درهم کلمه معرب سوېده آریزه کلمه یې دراخما ده چي یوناني ده، په همدې ډول استاد آن د کوچنیو پوښتنو څخه لا هم زغم د لاسه نه ورکاوه، او په ورین تندي او ځانګړي ټینګواله یې ځوابونه ویله .

اروا دې ښاده او ځښتن دې فردوس جنت ځای وګرځوي



د گلونو قافلې ګني په تلو دي
په خواشینی سره مې دا ږغ تر غوږه سو چې ستر لیکوال، تاریخپو، ادیبوه، ټبرپوه استاد علامه پوهاند عبدالشکور رشاد د ابد په خوب بیده سو.
. . . استاد یوازي عالم نه بلکي یو سه معلم و
. . . هغه یوازي هیوادني نه بلکي باندني عالم هم و.
. . . هغه په مړو ژبو هم پوهېده. هغه صوفي او روحاني شخصیت هم و. د پاک خدای نه د هغه د روح او مغفرت غوښتنه کوم.
وروسته کندهار ښاروال عبدالله پوپل وینا وکړه:
"زه د ښار د ټولو اقوامو او اوسېدونکو نر او ښخو د طرفه د دې فاضل استاد مړینه یوه لویه فرهنګي، علمي او ملي ضایعه بولم.
وروسته د ختیځ سمت د فرهنګیانو په استازیتوب استاد محمد آصف صمیم وینا وکړه او داسي یې وویل
"د علامه استاد رشاد د ویر پر ټغر ناستو!
السلام علیکم ورحمه الله وبر کاته
خدای مې ویني خدای مې شاهد دی، د الفاظو او ستر ګو چینه مې وچه ده. که څه راسره وای نو لړ تر لړه دومره به مې درته ویلي وای، د استاد د ویر پر ټغر ناستو ما درته د ننګرهاره یو ډک زړ ګی راوړی. او له تاسو سره د ویر پر دغه ویر ټغر باندي د ناستي اجازه غواړم خو کاشکي پرې اینبی هم وای چي لکه پرې اینبی چي مو یم. کاشکي زما حواس، زما ژبه زما احساسات او زما د ټولو . . . او د قلبي تأثیراتو عکاسي کولای سوای.
نو ما به ویلي وای:
تاسو ډېر غیور قوم یاستی، تاسو غښتلی قوم یاستی، تاریخ ساز قوم یاستی، او نن د یو ډېر عظیم علمي ناوري، د تحمل ویاړ لری، د ویاړ ځای دی، خلک ډېر ولاړ سي، راسي دا دنیا، دا د پرودګار نظام داسي استوار دی . . .
هغوی د وینا په بله برخه کښي داسي وویل:
زموږ ایمان دی چي خو به ټول به څو.
خو د پروردګار په حضور کي مو دا سوال دی، چي خدایه که پښتو ادب د شېرو بحرونو څني د وروستي بحر اعظم په دې تګ موږ ازمویې دا یو احسان هم راسره وکړه چي د استاد رشاد د لاري لارویان زیات کړه . . .".
بیا د هغو ټولنو نومونه واورول سوه چي د خواخوږۍ او ډاډ ګیرني پیغامونه یې رالېږلي وو.
د ویناو د برخي وروستي ویناوال ډاکټر طارق رشاد و. هغوی وویل: . . . اروابناد رشاد بابا ۲۰ کاله په سوونخیو او ۲۰ کاله په پوهنتون کښي ډېر شاګردان وروزل.
. . . رشاد هغه څوک و چي قلم یې د هڅوني له یاره واخیست. پوخ یې کړ او د دې لاري سروال و ګرځېد
. . . هغوی همېش پر ملي دریځ ټینګار کاوه.
د بل واکیو په وړاندي یې تل در بدنه کړې.
. . . هغوی پخپله کوچني کورني پوري اړه نه لري، دوی د ټول افغان کورنۍ غړی او د هغه علمي سروال و. . . د ده د ژوند ډېره که مړه سوه هغه په ډېرو ذهنونو کي د علمي پوهې او ملي روحیې ډېوې بلي کړي دي.
د ده معنویت زموږ د ژوند د لاري مشال دی.
ده ۹۴ مستقل آثار لیکلي، څېړني یې کړي، ژباړي یې کړي، اشعار یې ویلي او په سلګونو مقالې یې لیکلي دي.
. . . هغوی د هر انسان سره خواخوږي او په ویر یې ویرجن و، اوس چي موږ د ده پر ویر ناست یو زه ستاسو ټولو څخه مننه کوم.
وروسته په لنډ وخت کښي د دغه ډول ښو مراسمو څخه د کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون او د اطلاعاتو او کلتور د رئیس عبدالمجید بابي څخه مننه وسوه، او تر څنګ د طلوع افغان او بري د څانګړو خپرونو د برابرېدو څخه خوښي او ستاینه وسوه، او دعا وسوه چي د کندهار لمنه دي د داسي علمي شخصیتونو څخه نه خالي کېږي.
وروسته مولوی نېک محمد دعا وکړه او د ویناو برخه پای ته ورسېده.
او فاضل استاد علامه رشاد بابا په ډېر درنښت په ګرومجنو زړونو او سرو ستر ګو و خاورو ته وسپارل سو او په لسګونو د ګلونو لويي لويي کړی یې د قبر د پاسه په ډېر درناوي سره کښېښودل سوې او د دې مراسمو وروستي دوعاوي ور ته تر سره سوې.
په پای کي مېلمانه او کوربانه د منډيګک ماڼی ته ولاړه او هلته یې د ګل آغا شېرزي په مشري د کابل څخه د کابیني د راغلو غړو، یو شمېر نورو مېلمنو، کندهار والي او کندهار ولایت د چارواکو سره په ګډه د غرمې ډوډۍ وخوړه.
په راغلو کسانو کښي د کابل پوهنتون استادان، د افغانستان د علومو اکاډمي پتمنو استادانو، د ختیځ سمت، پکتیا، خوست، کنړ، وردګ، زابل، هلمند، ارزګان، هرات، فراه، غزني، زابل، کوټي او نیمروز څخه په سلګونو فرهنګیانو، لیکوالانو، فرهنګپالو او د علامه رشاد بابا مینه والو ګډون درلود.

خپړنمل شېرشاه رشاد

# علامه رشاد اکاډیمي

د **علامه بابا** جسمي ابدي بېلتون د هیواد په دننه او دباندي کښي ډ ډېرو مخلصانو او ارادتمندانو ویر لړلي زړونه ټوکر، ټوکر کړل. د دغه ویرجنو زړونو سپېڅلي مینې او تودو جذبو د سرامنو اوښکو په څپو کښي له لیري او نژدې څخه خپل د خواخوږۍ احساس او پیغامونه راولېږل. د دغه څرګند تیا تر څنګ د **علامه بابا** د ناچاپو قلمي آثارو د چاپ او د کتابونو د خوندي کېدو په اړه د ګروم او تشویش سره سره د هر ډول مرستې، بسپنې، ونډې او منډې له پاره څګرونه وټکول سوه.

د دوی د خواخوږۍ او پېرزوینې څخه د مننې او کورودانې په څنګ کښې په دې فکر کې ډوب سولو چې د دې لوی کار د سمبالتیا او د دې ټولو خواخوږو د احساس او غوښتنو په وړاندې څه باید وکوو؟

د مرګي نامرادې څپېړې که **علامه بابا** جسما زموږ څخه یووړ. خو زموږ په زړونو کښې د تلپاتې ډیوې په بڼه بل او وړانګین دی. راځئ د دوی (**اروانباد علامه بابا**) د پلرنۍ دوړي د تبرک له پاره د لېمه رانجه کو. تر څو د دوی د لویې پېرزوینې، لویې حوصلې، څېړنیز هاند او شکاکیت، خلانده استعداد، سیاسي درایت او متانت، د نفس مناعت، د هیواد، اولس او بشر سره د ژورې مینې، د زورواکو او تیري څخه د کرکې، پر اصولو د کلک ټینګار، د نېکمرغه لمر وړانګې پر موږ ټولو وغوړېږي او د دغه نېکمرغه لمر په برکت تتې او تیارې لارې رڼې. کرکجن زړونه مینه ناک، تاش په تاش او متشتت فکرونه سره یو. غچ غوښتونکي هڅې په لورینې او پېرزوینې باندې واړوو.

د **اروانباد علامه بابا** د روح د خوشالتیا او د دوی د لویو ارمانونو د پوره کېدو له پاره د ادبي او سیاسي نوابغو، علماوو، پوهانو او سوواندو د روزنې په درنه غېږه، د افغانانو په جګه شمله، د کندهار په لرغونې ټاټوبي کښي د یوې داسې علمي اکاډیمي (**علامه رشاد اکاډیمي**) بنسټ کښېښول سې چې د ادبي، فرهنګي هلو ځلو په لړ کې به لوی کتابتون (د **علامه بابا** او نورو حقدارو کتابونه به پکښې خوندي وي)، څېړنتون (**رشادپوهنه**، حبیبي پوهنه، بېنوا پوهنه، خادم پوهنه، الفت پوهنه، رښتین پوهنه، خوشال پوهنه، رحمان پوهنه، حمید پوهنه، غني پوهنه، کامل پوهنه او نورې څېړنیزې برخې به یې موخه وي)، خپرندویه څانګه (د **علامه بابا** او نورو حقدارو د کتابونو چاپ)، ژباړنتون (د پښتو ژبې بډای ادب او ستر پوهان نړۍ ته په بهرنیو ژبو ورپېژندل او له بهرنیو ژبو څخه ادبي شهکارونه او تاریخي اثار پښتو ته رااړول) او نورې برخې ولري.

دا اکاډیمي به د کار د سمبالښت له پاره یو مشر، علمي جرګه ګۍ او غړي لري چې د هیواد دننه او دباندې پوهان، لیکوال، شاعران او څېړونکي به یې بل الفعل یا بالواسطه د دې جرګې غړي وي.

د اکاډیمۍ لویه موخه به د **علامه بابا** او نورو حقدارو د کتابونو چاپ او اولس ته رسونه وي چې دا لوی او دروند کار د معنوي او مادي پلوه درو یا څلورو تنو په وسه نه دی. د دې سپېڅلي کار له پاره به ادبي کچکول ګرځول کېږي، معنوي او مادي مرستې به راټولېږي. هره پېرزوینه به د ادب پر ټولو مینانو او په ځانګړې توګه د اروانباد **علامه بابا** پر کورنۍ باندې لوی منت وي.

د دې اکاډیمۍ او لوی کتابتون د ودانۍ له پاره به د مځکې مرستې ته دولت غاړه ایږدي، د ودانۍ د جوړېدو ونډې ته به په هیواد کښي فرهنګیان او پر ادب مین سوداګر او شخصیتونه او تر هیواد دباندې د ژبې او ادب د بډاینې سره لېوال افغانان او بهرنیان رابلل کېږي. د ونډې او بسپنې د راټولولو او پر ځای لګولو له پاره به دقیق سیستم جوړېږي چې د خېنو (انجو) غوندې په خورجین به یې باد نه ننوزي. د هرې اوغانۍ راټولونه او لګښت به یې د اکاډیمۍ په ویبپاڼه (ویب سایټ) کښي ثبت، په خپرنیزو رسنیو کښي چاپ او د مینه والو تر درانه کاته پورې رسېږي. اکاډیمي به خپله مرامپاڼه، تګلاره او تشکیل لري.

البته! ټوله یورتنۍ چارې په یوه پلا د ستر ګو په رپ تر سره کېدای نه سي، سو که، سو که د مېړنو د سپېڅلي مینې او تودو جذبو له فیضه او د پرله پسې معنوي او مادي مرستو او بسپنو په برکت به دا اوږده مزلونه لنډوو. له کوچنیو هیلو څخه به د لویو موخو (هدفونو) پر لور ګام اخلو او وده به کوو. د ټولو خواخوږو او مینه والو د نظر لوستو او اورېدو ته ستر ګي په لاره یو.

اې ! زما پاک لمنو لوڼو او غیرتمنو زامنو
تاسې د غرو د ځوکو له پاسه ځلانده لمر یاست
تاسو د توپان په وخت کې زه
د ډوبېدو او له دښمنانو څخه وژغورلم

دښمن ماته وخوړله او وشرمېده
د ژمي ځای پسرلي ونیو
بلبلان ناڅي او ګلان غوړېږي
مالیار د خوشحالۍ راز رابرسېره کړ

د مینې اوبه په سیندونو کې بهېږي
چې دښتونه او درې د وینو د رڼو څخه پاکې کړي
د سهار شمال د شنو بڼونو مخ په مینه ښکلوي
مړه سوي زړونه بیا را ژوندي کیږي

راځئ چې یو ځای سو وخت د کار او هڅو دی
د خپګان لوګی هوا ته ختلی ، نېکمرغی د هغه ځای نیولی دی
د پوره هڅو کاروان را روان دی
د خرابکارۍ ځواکونه له منځه تللي اوس زموږ وار دی